کابل دښوونې او روزنې پوهنتون

ژبو او ادبیاتو پوهنځی

پښتو څانګه

# پښتو ژبه او ادبیات

د ?وونکود روزن? عالي مؤسسودناپ?تو ?ان?و

د دیارلسمو او ?وارلسمو ?ول?یولپاره درسي

کتاب

لیکوالان: پوهنمل محمد آقا (شېرزاد)

او پوهنمل جمشید (رشیدي)

کابل ۱۳۸۵ لمریز

د کتاب ځانګړنې:

دکتاب نوم: پښتو ژبه او ادبیات
لیکوالان: پوهنمل محمدآقا(شېرزاد )
او پوهنمل جمشېد (رشیدي)
کمپوز اوډیزاین: رفیع الله(ستانګزی)
کمپیوټرچارې: رفیع الله (ستانګزی)
چاپځای: کابل ، افغانستان
چاپکال : ۱۳۸۵ لمریز
چاپ شمېر: 1000 ټوکه

## لړليک

سرليک مخګڼه

دباندینیو او کورنیوژبپوهانو دپلټنو او څیړنو په ترڅ کې دا جوته شوې چې پښتون دآریایي قوم یوه څانګه ده اودا هغه آریایي پښت دی چې څلور زره کاله پخوا په بلخ،بخدي او آمو سیند په غاړو او شاوخوا کې اوسیدل،پښتو د همدې خلکو ژبه وه.

ځینو پښتو له سامي ژبو څخه یوه ژبه بللې ده. په دې اړوند یوه باندیني پروفیسور د روسیې د اکاډمی غړی چې (کلاپورت) نومیږي دا سې ویلي دي:(( چې ځینو خلکو پښتو سامي بللې ده. خو زما په اند پښتو یوه خالصه هندو آرین ژبه ده. ځکه چې دغه ژبه نه دالفاظو ، لغاتو او نه د ګرامر له مخې سامي ژبو سره کومه اړیکه لري. ))

دکلاپورت نظردپښتو ژبې په اړوند نورو ډېرو بهرنیو پوهانو هم تایید کړی دی، او داخلي پوهان هم دا نظر تاییدوي.

ځکه چې پښتو ژبه،دالفاظو ،ترکیبونو او ګرامر له مخې د عبراني او سامي ژبو سره هیڅ اړیکه او ورته والی نه لري. نوپښتو یوه لرغونې او تاریخي ژبه ده،چې دنسبتي (و ) په یوځای کېدو سره د ویدي عصر مشهورې قبیلې (پښت = پکهت) ته منسوبیږي.

دپکهت قبیله دآریایي لسو قبیلو له ډلې څخه ده،چې د ریګویدا په کتاب کې یې څو ځایه نوم یاد شوی دی.

د ((پښت)) قبیله د وخت په تېرېدو سره د (ون) د روستاړي په یوځای کېدو سره د ((پښتون)) په بڼه اوښتې ده.

په هر صورت دغه ملت د لرغونې اریانا په خاوره کې دپامیر، هندوکش، سپین غر، کسي غر په لمنو او دآمو،هلمند،آباسیند او نورو سیندونو په غاړو کې روښانه او ویاړلی تاریخ لري.

پښتو او دري دواړه خویندې ژبې د هېواد په ښوونځیو ، د ښوونکو دروزنې په عالي مؤسسو او دپوهنتون په ځینو پوهنځیو کې تدریس کیږي.

پښتو ژبه د ښوونې او روزنې پوهنتون ،په ځینو پوهنځیو کې [اختصاصي تعلیمات،مسلکي تعلیمات،ژبو او ادبیاتو پوهنځی (دري، روسي، عربي او انګلیسي)] څانګو کې تدریس کیږي. د پوهنځیو د درسي پلانونو مطابق ددې ژبې تدریس ته دوه کریدته یا دوه درسي ساعتونه په یوه سمستر کې او په ځینو کې په دوه سمسترونو کې تدریس کیږي.

پښتو ژبې ښوونکي کله چې پښتو د دوهمې ژبې په حیث تدریس کوي دوی باید دژبې د زده کړې او تدریس څلورګونې مهارتونه (اوریدل،خبرې کول،لوستل او لیکل) په پام کې ولري.

دژبې ښوونکي دې ددوهمې ژبې د تدریس په صورت کې کوښښ وکړي ،چې کوم دستوري او ګرامري توپیرونه چې د زده کوونکي د مورنی ژبې او د دوهمې ژبې ترمنځ موجود وي زده کوونکو ته ور په ګوته کړي. څو په راتلونکې کې زده کوونکي په دې اړوند د تېروتنې څخه ځان وژغوري.

مثلاً دپښتو ژبې ښوونکي کله،چې پښتو د دوهمې ژبې په حیث په دري ژبو سیمو کې ښوونځیو یا دلوړو زده کړو په مؤسسو کې تدریس کوي،نو لازمه ده،چې په لومړي قدم کې په هغو توپیرونو

باندې رڼا واچوي، کوم چې د دري ژبې او پښتو ژبې په ګرامري جوړښتونو کې موجود دي.
دمثال په ډول د مضاف او مضاف اليه په برخه کې، چې په پښتو ژبه کې لومړی مضاف اليه او بيا مضاف راځي. ؛ لکه: ((د کابل منې)) چې يو اضافي ترکيب دی. (د) د اضافت ادات، (کابل) مضاف اليه او (منې) مضاف دی. همدغه ترکيب په دري ژبه کې برعکس راځي. خو که مضاف اليه د (مې، دې، يې) ضماير واقع شي، بيا د دري په شان لومړی مضاف او بيا مضاف اليه واقع کيږي. ؛ لکه: (کتاب کې) او نور.
دصفت او موصوف په برخه کې چې په پښتو ژبه کې صفت تر خپل موصوف د مخه راځي او د موصوف سره مطابقت ښيي، حال دا چې په دري ژبه کې بيا دا فرق کوي.
په همدې ډول د مذکر او مؤنث په برخه کې چې په پښتو ژبه کې د نارينه نوم او ښځينه نوم لپاره ځانګړې نښې او علامې موجودې دي. چې بيا دا نښې او علامې د دري ژبې په ګرامر کې نه تر سترګو کيږي.
او په همدې ډول نور تو پيرونه....
ترتيب شوی درسي پروګرام لاندې برخې لري:
دا چې زده کوونکي او زده کړيالان د پښتو ژبې په ګرامري اساساتو او قواعدو، پوهېدلي او زده کړه ترلاسه کړې وي، نو په لومړۍ برخه کې
د پښتو ژبې په دري جوړښتي نظامونو (فونولوژي، موفولوژي، سنتکس) باندې په فشرده ډول معلومات راوړل شوي دي.
دوهمه برخه کې په ادبياتو، نظم او نثر او د پښتو ادب تاريخ په دورو باندې د ضرورت وړ مطالب څرګند شوي دي.
په دريمه برخه کې دا چې زده کړيال د تحصيل په لړ او فراغت مهال کې خپلې ليکنې او د نورو ليکنې په درست ډول ليکلې او تعقيب کړې وي، ځينې املايي او انشايي لارښوونې اود ليک نښې نښانې راوړل شوي دي.
په پای کې هغه اخځليکونه راوړل شوي، کوم چې ددې درسي کتاب په ترتيب کې ترې ګټه اخيستل شوې. ښايي د مطالبو په ترتيب او تنظيم کې نيمګړتياوې تر سترګو شي د درنو لوستونکو او پوهانو څخه يې دلا تکميل په اړوند سترګې په لار يو.
په درنښت
پوهنمل محمدآقا (شېرزاد)
دښوونې او روزنې پوهنتون د پښتو څانګې استاد

## ژبه

ژبه په عام ډول سره د پوهولو اورا پوهولو یا افهام او تفهیم وسیله ده، په خاص ډول ژبه د غږیزو، اوریزو او سیمبولونو یو داسې کسبي او اتفاقي سیستم دی، چې د یوې ټولنې وګړي یې یو له بله د پوهولو او راپوهولو لپاره پر ژبه راوړي او یو بل ته یې اوروي.

یا په بله وینا: ژبه په خاص ډول هغه اوازونه دي، چې انسانان یې د خپلو افکارو او خیالاتو د څرګندولو په غرض تریو ځانګړي نظم او سیستم لاندې د غږیزو غړو په وسیله له خولې څخه راباسي او په دې توګه یو له بله سره اړیکه ټینګوي، یانې یو بل پوهوي او راپوهوي.

داچې ژبه لومړی ځل څنګه منځ ته راغلې ده؟

په دې باب د علماؤو تر منځ مختلف نظریات اقامه شوي دي چې د ټولو راوړل یې دلته لازم نه دي خو په لنډ ډول داسې ویلی شو چې:

ژبه له ټولنیز ژوند سره سمه منځ ته راغلې ده، داسې چې د ټولنیز کار په بهیر کې لومړی د نغوتو، اشارو او ورپسې د جړوپړو او هیجاني غږونو په بڼه غږیدا پیدا شوې او بیا له هغو څخه د پرله پسې ټولنیزې اړتیا په توګه ژبه منځ ته راغلې ده.

د ژبې د پیدا ایښت تاریخ د انسانانو د پیدا ایښت د تاریخ سره ټینګې اړیکې لري. او د انساني ټولنې د تاریخ د تکامل او پرمختګ سره یې سم تکامل موندلی دی او په نتیجه کې یې د غه او سنۍ بڼه غوره کړې ده.

داخو څرګنده خبره ده، چې لومړني انسان د پیدا ایښت په لومړي وخت ژبه نه درلوده، خو کله چې یې د دې ضرورت احساس کړ خپلې غوښتنې، افکار او خیالات نورو ته انتقال کړي نو د ستونزو او مشکلاتو سره سره یې ژبه منځ ته راوړه او د ژبې د پیدا ایښت د غه پیښه ډیره پیچلې، د تحول او تکامل ډېره اوږده دوره یې تېره کړې ده.

څرنګه چې ژبه په تاریخي ډول پیدا شوې او د انسانانو ترمنځ د ګډون یوه پیچلې وسیله ده. یانې هغه وخت، چې انسانانو ته دا احتیاج پیدا شوی، چې یو بل ته څه ووایي د دغه احتیاج له مخې غږیزو غړو (صوتي اعضأ) پراختیا وموندله، چې په تدریج سره دغه پراختیا او بریالیتوبونه پر مخ ولاړل، چې بالاخره د خبرو کولو ننني نړۍ منځ ته راغله، چې دغه او سنۍ بڼه او شکل د ټولنیز ژوند د اوښتون او پرمختګ ښه پایله ده، چې ژبې هم ورسره په خپل وار اوښتون او پرمختګ کړی دی.

دژبې ګرامر:

کله چې یوه ژبه څېړو او مطالعه کوو یې نو دهغې ژبې د غږونو او اوازونو جوړښت، مورفیمونه یانې د مانا لرونکو عناصرو او کلمو جوړښت د عبارتونو او جملو جوړښت تر څیړنې او مطالعې لاندې نیسو، چې په نوې ژبپوهنه کې د تشریحي ژبپوهنې دغې برخې ته ګرامر وایي.

داچې ژبه ځان ته درغښت او ساختمان ځانګړی نظام لري نو دژبې ګرامر دژبې درغښت او جوړښت همدغه نظامونه تشریح کوي.

پښویه یانې ګرامر د تشریحي ژبپوهنې هغه لویه او غوره څانګه ده، چې د یوې ژبې د جوړښت

(ساختمان) نظام او سیستم د تاریخ په یوې ټاکلې مرحلې کې تر څیړنې او مطالعې لاندې نیسي.
پښتو ګرامر دغه وروسته درې مهمې او لویې څانګې لري:

۱.غږ پوهنه یا فونولوژي phonology
۲-ګړ پوهنه یا علم صرف(مورفولوژي) Morphology
۳- جمله پوهنه یا علم نحو(سنتکس) syntax

## غږ پوهنه یا علم صوت(فونولوژي):

په غږ پوهنه کې غږونه او دهغو د پیدا ښت ډولونه او نورې ځانګړتیاوې په علمي او سیستماتیک ډول تر څیړنې او مطالعې لاندې نیول کیږي.
غږ یا فونیم:
دژبې تر ټولو کوچنی غږیز توک دی،چې په ځانګړې توګه کومه مانا نه لري مګر په کلمو کې د مانا د توپیر سبب ګرځي.
مثلاً: د(پ) فونیم په پند pand کې که په (ب) بدل شي نو بند band ترې جوړیږي.
دفونیم لیکلې بڼې ته ګرافیم ویل کیږي. یا په بل عبارت ګرافیم هغه د لیدو وړ رسم دی،چې دیوه اواز ښکارندویي کوي.
غږونه د سا(هوا ) د چلند له مخې په څلور برخو ویشل کیږي:
الف: خپلواک(واول )آوازونه
ب: ناخپلواک(کانسوننټ) اوازونه
ج: نیمواک (نیمه واول) آوازونه
د: غبرګغږونه (دیفتونګونه)یا ترکیبي آوازونه
الف: خپلواک آوازونه (واول آوازونه):
هغه اوازونه دي،چې د تلفظ پروخت یې خوله یا صوتي وتونځی دهیڅ ډول هوايي بندیز سره نه مخامخ کیږي. یاني له خولې څخه داسې ښوی راوځي،چې غږیز غړي یو له بله سره ټکر نه کوي او په دې توګه د تنفس دهوا په جریان کې کوم بندښت او موانع منځ ته نه راځي.
واول اوازونه دادي:

۱- الف(ά ) لکه د اواز په کلمه کې =(άwάz)
۲- زور(a ) فتحه لکه د توره په کلمه کې =(tora )
۳- زوررکی کوچنۍ(ه ) (ə) لکه دتره په کلمه کې (tra )
۴- خرګند یا لنډ زیر(ي، i ) لکه دښادي په کلمه کې (sádi )
۵- اوږد سپک زیر(ې e ) لکه دناوې په کلمه کې (Náwe )

۶- اوږد پیښن (و=0 ) لکه دلور په کلمه کې (lor )
۷- لنډ پیښن (و=u ) لکه د سور ،خوی په کلمو کې (sur-xay )

ب: بیواک (کانسوننټ) اوازونه:
هغه اوازونو ته ویل کیږي، چې د تلفظ په وخت د سا(هوا ) جریان د غړیزو غړو په واسطه په بشپړ یا نیمګړي ډول تمبنت یا بندښت پیدا کوي.
په پښتو کې بیواک آوازونه دادي:

۱-(ب= b ) لکه په برخه barxa – بوره = bura کې
۲-(ت= t ) لکه په توره tora - تاک tak کې
3-(پ = p ) لکه په پور pur - پول pul کې
۴-(ټ= t ) لکه په ټال tál - نیټه Neta کې
۵-(ج = j ) لکه په جاج jáj - جنګ jang کې
په همدې ډول تر پایه................................

ج: نیمواک (سیم واول ) آوازونه:
هغه اوازونو ته ویل کیږي، چې د خپلواکو او بېواکو اوازونو تر مینځ منځګړیتوب کوي. یاني که چیرې د سیلاب ، څپې یا هجا هسته وګرځي د خپلواک اواز بڼه او که چیرې د څپې هسته ونه ګرځي نو د بېواک اواز بڼه ځان ته نیسي.
پښتو ژبه دوه نیمواک اوازونه لري:

۱-(و = w ) لکه د رواغ rwágəd او ورور wror په کلمو کې
۲-(ي=y ) لکه د yum او یلبند yelband په کلمو کې

د: غبرګغږونه یا ترکیبي اوازونه:
یو ډول نور اوازونه هم شته، چې هغو ته غبرګغږونه (دیفتانګونه ) وايي.
غبرګغږونه عبارت له هغو اوازونو څخه دي، چې یو جز یې خپلواک یاني غږیز اواز او بل جز یې نیمواک یاني سیم واول وي یاني د واولونو او سیم واول له یو ځای کیدو څخه مینځ ته راځي خو پدې شرط، چې لومړی توری یې خپلواک او ورپسې دویم یې نیم واک وي اود یو ستوي غږ په څیر له خولې څخه راوځي. څرنګه چې په پښتو کې دوه نیمواک اوازونه لرو نو دیفتانګونه یې هم په دوه ډوله جوړیږي:
اول: د(ی = y ) په مرسته جوړ شوي دیفتانګونه:

۱-(آی=áy ) لکه: پای páy ځای záy
۲-(ای=ay ) لکه: سړی sαrαy منګی mαngαy
۳-(ۍ=yə) لکه: زمرۍ yəzmαr ملالۍ mαlál yə
۴-(وی=uy ) لکه: سوی suy ، خوی xuy
۵-(وی=oy )لکه: زوی zoy ، لوی loy
دوهم:د(و=w ) په مرسته جوړشوي غبرګغږونه:
۱-(او=αw ) لکه: لو lαw ، پلو pαlαw
۲-(آو=áw ) لکه: کړاو kαráw ، پړاو pαráw
۳-(و=wə) لکه: یو uəy ، کتو kαtow
۴-(یو=ew ) لکه: دیو dew ، لیو lew
۵-(یو=iw ) لکه: تریو triw ، نیو Niw

یادونه: بیواک غبرګغږونه یا کلسترونو هم لرو. هغه غبرګغږونه دي چې ددوو یا زیاتو بېواکو اوازونو د یو ځای کېدو څخه مینځ ته راځي بېواک مرکب اوازونه یا کلسترونه یې بولي. لکه: شپه spa ، لمر lmαr ،میاشت myást
ګړپوهنه یا علم صرف(Morphology ):
صرف یا مورفولوژي دګرامر هغه برخه ده، چې په هغه کې دیوې ژبې ټاکلي مورفیمونه، دهغوی جوړښت ،ترکیب، ګردان اود هغوی ډولونه ترخیړنې او مطالعې لاندې نیول کیږي.

ګړ یا مورفیم: هغه کوچنی ژبنی مانیز واحد دی که تجزیه شي خپله مانا له لاسه ورکوي او دهغه له تجزیه کیدو څخه بې مانا اوازونه لاس ته راځي اویا په لنډ ډول باید وویل شي:
مورفیم یو نه تجزیه کیدونکی مانا لرونکی واحد دی.
مورفیم او څپه:
څپه د هجا یا سیلاب په مانا ده. کله که مورډ د مورفیم څخه بحث کوو نو دڅپې موضوع حتماً را منځ ته کیږي،ځکه چې څپه د مورفیم یو جز دی.
څپه یا سیلاب ژبنی واحد دی،چې یا یو خپلواک وي اویا له یوه خپلواک اویوه یا څو بیواکو څخه جوړوي او په یوځایي ډول له خولې څخه راووځي.
لکه: د(ابا ) کلمه چې دوې څپې لري،چې لومړۍ (آ )یوه څپه یو خپلواک غږدی او دوهمه (با ) بله څپه ده، چې له یوه بیواک (ب) اویوه خپلواک (ا ) څخه جوړه شوې ده او په ګډه سره دواړه یو مورفیم جوړوي او که چیرې تجزیه شي بې مانا غږونه یانې اوازونه لاس ته راځي.
خپلواک یا واول اواز دڅپې په جوړښت کې رغنده او اساسي رول لري په دې مانا چې پرته له خپلواک آواز څخه څپه نه شي جوړېدای یانې خپلواک آواز د څپې زړی یانې هسته جوړه وي.
څپه په دو ډوله ده:

الف: واژه څپه:

هغې څپې ته وايي، چې په خپلواک اواز پای ته رسيدلې وي.

لکه: ابا = άbά - زه = zə - ته = tə - بيا = byά

ب: تړلې څپه:

هغې څپې ته ويل کيږي، چې په يوه بيواک اواز پای ته رسيدلې وي.

لکه: مور – mor خور – xor کټ kət خپل xpəl .

مورفيم او کلمه:

کلمه يو رواني واحد دی، چې بيل ويل کيږي او ليکل کيږي او لغوي مانا لري خو مورفيم يو لفظي واحد دی، چې لغوي او گرامري مانا لري مورفيم کله بيل او کله ديوې کلمې د جز په توگه راتلای شي.

دبيلگې په توگه کتابچه يوه کلمه ده، چې له دوو مورفيمونو (کتاب) او (چه) څخه جوړه شوې ده، ياني کتاب يو مستقل مورفيم او چه يو تصغيري روستاړی دی، چې يو نا خپلواک مورفيم دی نو پدې توگه کتابچه يوه کلمه ده او چه له دوو مورفيمونو څخه جوړه شوې ده .

دګړيا مورفيم ډولونه:

مورفيم په لومړي سرکې په دوو لويو څانگو ويشل کيږي:

١- خپلواک يا آزاد يا غير مقيد مورفيمونه

٢-نا خپلواک يا تړلي او يا مقيد مورفيمونه.




فعلونه نومونه تاړي(وندونه وييکی(ادات قيدونه)

:مورفيمونه الف: تړلي مقيد

او برخې، چې په ځانگړې او مستقل ډول د استعمال ديوې ژبې وينا او عبارت کې هغه وړې توټې خپلواک ډول استعمال شي هيځکله هم مانا نه ورکوي نو ځکه تړلي ورنه دي. ياني که په ځانگړې او .کيږي مورفيمونه بلل

مورفيم او (ونه) لکه دکتابونو کلمه، چې له دوو مورفيمو څخه جوړه شوې ده (کتاب) يو خپلواک

توګه کومه مانا نه  دجمعي روستاړی دی که چیرې دکتاب د کلمې څخه لرې کړای شي په خپلواکه
. ورکوي
:خپلواکه کلمې دادي تړلي مورفیمونه یا نا
دي،چي دکلمو اړوند توب لپاره په کلام کې دکلمې څخه دمخه سرینې: هغه نا خپلواکه کلمې -۱
. لیکل کیږي راځي دکلمې سره یو ځای نه
. نور دکلمې په ماناکې کوم تغیرنه پېښوي.  لکه:  (له،په،پر،د ،له،و ) او
:(ها پسینې یا اوستریلونه(پسینه -۲
راځي او دهغه نوم دریځ او څرنګوالی بیانوي–  هغه نا خپلواکه کلمې دي،چې تریوه نوم وروسته
.بنندي دکلمې په مانا باندې کو م اثر نه
لکه: ( کې، پسې ،سره،ته، باندې،کره، پرته اونور

)
په لاندې جملو کې وګورئ د سرینو او پسینو څو مثالونه

:
.زه په ټولګي کې یم -۱
. بری حاصلیږي په زیارسره -۲
.په چا پورې مه خاندئ -۳
.دخبرو لپاره وخت نه لري -۴
.ترښونځي پورې ځم -۵
.بې اوبو څخه ژوند نشته -۶
و تا ته مې ووې -۷

مورفیمونو سره د یو ځای والي او  تاړي(وندونه): هغه تړلي او مقید مورفیمونه دي،چې ازادو
:چې په لاندې ډول دي پیوستون له کبله دهغو مانا او مفهوم څرګندیدای شي
پښتو یې مختاړي بولي هغه نا  مختاړي:- چې په عربي یې سابقه په فارسي پیشوند او په -۳
پیوست راځي او دکلمې مانا ته تغیر  خپلواکې کلمې دي،چې دکلمې دریښې څخه دمخه دکلمې سره
.ورکوي
.پسوند او په پښتو یې روستاړي بولي روستاړي: چې په عربي یې لاحقه -۴
دریښې سره پیوست راځي او دکلمې مانا ته تغیر  هغه ناخپلواکې کلمې دي چې دکلمې څخه وروسته
: ورکوي. لکه
لیکوال          ،          پوهنه+تون= پوهنتون = لیک +وا ل
.نور پوهن+ځی= پوهنځی او داسې
particles (وییکي(ادات -۵
:ګردانیدونکو مورفیمونو یوه مهمه برخه ده او په لاندې ډول دي ادات دنه

:(الف: اړيک وييکي (ارتباطي

ادات دڅومره والي، څرنګوالي او ورته والي له مخې دوه جملې سره نښلوي له ډېريو سره دغه

. چې ) هم ملګرې کيږي او په ګډه ددوو ټوټو يا فقرو اړيکې سره ټينګوي)

....،ځکه چې ،که څه هم ،بياهم، همداراز،څو ، همدارنګه،مګر لکه څومره

:ب: ورتني (تشبهي ) ادات

پديدو ته ورته والي او مشابهت ويل کيږي،چې د دوو يا زياتو څيزونو او هغو اداتو ته

.. غوندې ،په څير ،په رنګ ،په شان ،په دود ، په توګه، په راز :ښيي؛لکه

:(ج: ترويکي (دعطف ادات

. (جملې سره يو ځای کوي. لکه: (او ،که،يا ،سره چې کلمې او

وای زه او ته مثال: باغ وای دګلونو پکې ناست

غوړيدلی باندې ملاست وای زه او ته ګل وای

-:(داضافت توري) د: تولوييکي

او پديدې سره اړوندوي او ملکيت ښيي پښتو يوازې د هغو اداتو ته ويل کيږي،چې څيزونه

. دی له (د ) څخه اضافت يو توری لري، چې هغه عبارت

مثلا : داحمد قلم، دشپانه رمه ، دژورناليزم پوهنځی

:نامقيد )مورفيمونه) خپلواک

: لويو برخو ويشل کيږي ګردانيدونکي مورفيمونه په دوو

د نوم صرف -۱

دفعل صرف -۲

له زماني دارتباط څخه د راز راز څيزونو او پديدو څرګندونه کوي. لکه: نوم:- هغه کلمه ده چې بې

.،دوه او نور تيره،ښايست

:نوم په عمومي ډول د دريو اړخونو له مخې ګردانيږي. لکه

عدد او حالت . خو ضمير برسيره په جنس د شخص له پلوه هم ګردانيږي. لکه متکلم ،مخاطب جنس

.او غايب

: دجنس په لحاظ دنوم ګردان

کيږي. په پښتو کې دنارينه نوم دجنس څخه مطلب دادی،چې نوم په نارينه او ښځينه باندې ويشل

: په ترتيب سره وروسته ښودل کيږي او ښځينه نوم لپاره ځانته نښې او علامې موجودې دي، چې

:نښې دنارينه(مذکر) نوم

علامې راغلي وي دجنس په ټول هغه نومونه او صفتونه چې په پای کې يې دغه وروسته نښې او

. لحاظ مذکر نومونه ګڼل کيږي

اصل توري يانې کانسوننټ غږ ختم وي او سماعي مؤنث نه وي مذکر ګڼل هغه ټول نومونه،چې په -۱

لاس، اور، کټ، او نور کيږي ؛ لکه: ميز،

پسرلی ، توريالی ديفتانګ ختم وي.لکه سړی، زمری ( αy) ټول نومونه،چې په نرمه (ی) يا -۲

.اونور

... شفتالو ځرګند واو . لکه: تالو ،چاکو ،سالو ، باړخو، پتهو ، -۳
.....زورکی (ه-   ) لکه زړه، نیکه، پسه، لیوه،تره -۴
پړاو دیفتانګ . لکه: کړاو ، ( ǻw) آو -۵
Niw ــــــ نیو triw تریو : دیفتانګ. لکهiw -۶
dew دیو lew لیو : دیفتانګ. لکه ew -۷
xuy خوی buyد یفتانګ. لکه: بوی uy -۸
pǻyپای zǻy دیفتانګ. لکه: ځای uy -۹
soyسوی zoy زوی : د یفتانګ. لکه oy -۱۰
: ښځینه (مونث) نوم
دغه وروسته نښې او علامې راغلې وي د جنس په ټول هغه نومونه او صفتونه، چې په پای کې یې
: لحاظ مؤنث نومونه بلل کیږي
،بیدیا ؛ لکه: لیلا ،نڅا ،خندا ،ژړا( ά) الف -۱
غرمه، سترګه ،پاڼه،ګوته،لښته : لکه ( α) (څرګنده (ه -۲
دیفتانګ. لکه: ملالۍ ،تورپیکۍ ،کرکۍ ،ډوډۍ ( əy)= (تانیثي (ۍ -۳
،خوابښې ،ملګرې،ادې خپلواکه غږ: ناوې . e = (ې) مجهوله -۴
.خپلواک غږ یا څرګنده (ي) ،په نسبتي صفاتو کې ( i=د(ي -۵
..بیاتي لکه: خپلوي ،ښادي ،دوستي
....ورشو ،بیزو ،زانګو ، ښارو : لکه ( o) اوږد واو -۶
دیفتانګ ؛ لکه: کټو ( w  ) د -۷
: یادونه
نوم د پای نښه او علامه ده، د حقیقي معنوي مؤنثاتو نښه او علامه ده. کانسوننت، چې مفرد مذکر -۱
.....مور، خور، ترور، لور :لکه
په استثنایي ډول په ځینو کلمو کې د مفرد زورکی (ه-   ) ؛ لکه: چې مفرد مذکر نوم د پای نښه ده، -۲
...چاړه، ویاله، خوله، ترله : مؤنث نوم علامه هم ده.لکه
:همدا رنګه
کې په استثنایي ډول د چې مفرد مؤنث نوم د پای نښه او علامه ده په بې قاعدې نومونو ( α)الف -۱
. مفرد مذکر نومونو لپاره هم راځي
......لکه:ماما ، کاکا ،لالا ،ملا
په نسبتي او مغایره حالت کې د مفرد مذکر نوم د پای څرګنده(ي). چې مفرد مؤنث نوم د پای نښه ده -۲
. نښه جوړیږي
......مزاري،ننګرهاري ،سږي ،زمري،بریالي لکه: کابلي

دعدد په لحاظ د نوم ګردان
دعدد ځخه مطلب او مراد دادی چې نوم مفرد دی او که جمع

۱- مفرد نوم: هغه نوم دی، چې په یوه شخص یا په یوه شي دلالت کوي.
لکه: هلک

۲- جمع نوم: هغه دی، چې د یوه څخه په زیاتو دلالت کوي.
لکه: هلکان ،نجونې، څانګې ،خنداوې.

الف: دنارینه (مذکر) نوم د جمع کولو نښې او علامې.
دغه وروسته نښې او علامې، چې مفرد مذکر نومونه جمع کوي په دې ډول دي:

۱- د(آن = ǻn ) روستاړي (پسوند) ؛ لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| هلک | هلکان |
| پړانګ | پړانګان |
| مچ | مچان |
| لیوه | لیوان |
| کارغه | کارغان |
| آس | آسان |

۲- د(ونه Una ) روستاړی (پسوند) : لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| کتاب | کتابونه |
| قلم | قلمونه |
| لاس | لاسونه |
| کنډو | کنډوونه |
| پسه | پسونه |

۳- د(ي- i ) واول: کوم مفرد مذکر نومونه، چې (αy ) په دیفتانګ پای شوي وي جمع یې په څرګنده (ي) سره جوړیږي. لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| پسرلی | پسرلي |
| ملګری | ملګري |
| ستوری | ستوري |

۴- زورکی (ه- ) یا کوچنۍ (ه) ؛ لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| غل | غله |
| مل | مله |

په ځینو یو هیجایي نومونو یا صفتونو کې، چې لنډ (و) یې په منځ کې راغلی وي دغه د منځ (و) په (الف) بدلیږي او په پای کې د زورکي په زیاتولو جمع کیږي.

| مفرد | جمع |
|---|---|
| کونړ | کاڼه |
| شپون | شپانه |
| بیلتون | بیلتانه |

۵- ګان(gάn ) ؛ لکه: ماما ګان ، کاکاګان ،ساده ګان

۶- یان(yan ) ؛ لکه: میرزایان ،ملایان،اشنایان

ب:- دښځینه (مؤنث) نوم دجمع کولو نښې او علامې:

دغه نښې او علامې،چې مفرد مؤنث نومونه جمع کوي په دې ډول دي:

۱- داوړده یا مجهوله (ې) واول: (پرته له ساده،لوده،پیاده) مشترکه صفتونو څخه ټول هغه مفرد مؤنث نومونه،چې په (α ) باندې ختم وي په جمع کولو کې یې (α )په (ې) باندې بدلیږي.

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ونه | ونې |
| لښته | لښتې |
| میاشت | میاشتې |
| ستن | ستنې |
| خوله | خولې |

۲- دزورکي واله (ۍ، ) دیفتانګ. لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ډوډۍ | ډوډۍ |
| ځپلۍ | ځپلۍ |
| نارو غي | ناروغۍ |
| خوشحالي | خوشحالۍ |
| وداني | ودانۍ |

۳- ګانې او وې (gάne- we ) روستاړی(پسوند ) ؛ لکه:

| | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| خندا | خنداګانې یا خنداوې | |
| ژړا | ژړاګانې یا ژړاوې | |
| بلا | بلاګانې یا بلاوې | |
| بوډۍ | بوډۍ ګانې | |
| انۍ | انۍ ګانې | |
| راډیو | راډیوګانې | |
| بیزو | بیزو ګانې | |

پرته له (میرزا ،اشنا ،ملا ) څخه،چې مفرد مذکر کلمې دي او جمع یې د(یان) په روستاړي سره جوړیږي.

۴- د(اني- áne ) روستاړی یاني پسوند ؛ لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| کابلۍ | کابلیاني |
| دوبۍ | دوبیاني |
| ګونګۍ | ګونګیاني |
| لمسۍ | لمسیاني |

۵- د (یندي yande ) روستاړی یاني پسوند:
نو موړې نښه حقيقي مانوي مؤنثات جمع کوي ؛ لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| مور | میندي |
| خور | خویندي |
| ترور | تریندي |
| نږور | نږیندي |

۶-(یاني- yáne ) ؛ لکه: میرزایاني ،ملایانې، آشنایاني

## دنوم حالتونه:

دنوم حالت څخه مراد دادی،چې نوم په خپل چاپیریال کې دکومو حالاتو درلودونکی دی. نوم چې په جمله کي استعمالیږي دا لاندې حالتونه لري:

### ۱- فاعلي حالت:

که چیرې نوم په جمله کې فاعل واقع شي یانې کار او عمل ترې صادر شي حالت ته یې فاعلي حالت وايي.

لکه:رفیع سبق وایي. شاه محمود لیک کاږي. .زرمینه کارکوي.

په پورته مثالونو کې (رفیع، شاه محمود ،زرمینه) په جملو کې فاعل واقع شوي دي،چې فاعلي حالت لري.

### ۲- مفعولي حالت:

که چیرې یو نوم په یوه جمله کې مفعول واقع شي یانې پر هغه بای ته ورسیږي. هغه نوم ته مفعول او حالت ته یې مفعولي حالت وايي ؛ لکه:

توریالی ډوډۍ خوري. پلوشه مقاله لیکي.

په پورته مثالونو کې (ډوډۍ او مقاله) نوموړې مفعول واقع شوي دي او حالت ته یې مفعولي حالت وايي.

### ۳- اضافي حالت:

که چیرې یو نوم په جمله کې مضاف الیه واقع شي اویا دا چې یو څه ورپورې اړه ولري ،د نوم دغه حالت ته اضافي حالت وايي. په یو اضافي ترکیب کې لومړی د اضافت توری (د ) ورپسې مضاف الیه اوبیا مضاف راځي.

لکه: دزرمینې کور ښکلی دی. پدې جمله کې (زرمینې کور ) اضافي ترکیب دی چې (د ) اضافت

توری (زرمینه) مضاف الیه او (کور) مضاف دی.
یا لکه: زما کتاب ،ستا کتاب، د ده کتاب، دهغه کتاب، دهغې کتاب.
یادونه: که چیرې مضاف الیه د (مې،دې،یې) ضمیر واقع شي په دې صورت کې داضافت (د ) نه راځي او د دري ژبې په څیر لومړی مضاف او بیا مضاف الیه راځي ؛ لکه: کتاب مې ورک شو ، پدې جمله کې (کتاب مې) داضافي ترکیب بڼه لري، چې (کتاب) مضاف او(مې)ضمیر مضاف الیه واقع شوی دی. په همدې ډول کتاب دې ،کتاب یې.

۴- ندایي حالت:

که چیرې یو نوم ته بلنه یا غږ شوی وي. بلننوم یا منادي بلل کیږي ا و حالت ته یې ندایي حالت وايي .

په ندایي حالت کې دمذکر نوم په آخر کې (α ) او د مؤنث نوم په پای کې (ې) زیاتیږي. لکه:
احمد ! ، اې مسلمانانو ! ، زلمیه ! ، فاطمې ! ، زرغونې ! و داسې نور

۵- ارتباطي حالت:

کله که یو نوم د ارتباط له اداتو سره استعمال شي او دارتباط ادات ورڅخه دمخه یا وروسته راشي نو هغه نوم ارتباطي حالت لري. مثلاً:
له کوره راغلم ، بازار ته ځم.
په دغو مثالونو کې (کور او بازار ) نومونه ارتباطي حالت لري.
یا دونه: دنوم یا ضمیر داصلي بڼو سرهیڅکله دارتباط توری نه استعمالیږي.
دنوم څلورګوني ډلې:
په پښتو ژبه کې نوم څلورګوني ډلې دادي:
۱- څیز نوم اسم شی)
۲- ستاینوم (اسم صفت)
۳- شمیر نوم (اسم عدد )
۴- نومځری (اسم ضمیر)

نوم او د هغه ډولونه:

نوم چې ژبپوهان یې اسم بولي یو داسې نوم دی. چې یو ځای ،شی یا پدیدې نومونه او څرګندونه کوي او دا وروسته ډولونه لري:
۱- عام نوم: داسې څیز یا پدیده نوموي،چې ځانګړی او خاص نه وي بلکې ډولونه او خیلونه ولري ؛ لکه: هیواد ، ولس، هلک ،نجلی،څاروي........
۲- خاص یا ځانګړی نوم: چې ځانګړی څیز یا پدیده، شخص یا ځای نوموي. لکه: عبید ، نظیفه،افغانستان ، کندهار..........
۳- جمع نوم: چې یوه ډله او جمیعت نوموي.
لکه: ټولګی ،لښکر،رمه،ګوند،ټبر، غنم........
۴- جنس نوم: چې په یو نه شمیر یدونکي څیز اړه لري.
لکه: اوبه ، غوړي، تیل.......

۵- دمانا نوم: هغه نوم ته وايي، چې په غير محسوس څيز اړه لري او مادي وجود نه لري. لکه: پوهنه ،ښايست، فکر او ويره.............

۶- ذات نوم: چې په يو حس کيدونکي څيز پورې اړه لري يا په بله وينا داسې يو څيز، چې زموږ په حواسو حس کيداى شي: لکه ونه ،تيږه ،اوبه.........

۷- صوت نوم: چې طبعي(پنځي) يا مصنوعي اوازونو انګازه نوموي.
لکه: درزهار، ترپهار،.......

## ستاينوم او دهغه ډولونه:

ستاينوم (صفت) په خپلواک ډول څه نه نوموي بلکې د يو شي ځرنګوالى بيانوي. لکه: روغ ، غښتلى ،کمزورى، ښايسته ، تور او سپين........

په پښتو ژبه کې صفت دلوړتيا دپوړونو ياد لړوالي ،ډيروالي بيلابيلې ښکاره درې ګونې درجې نه لري. لکه په دري ژبه کې(خوب، خوبتر،خوبترين ) (بد ، بدتر، بدترين ) له دې امله په پښتو ژبه کې يو صفت د اداتو په ملتيا خپله درجه او طبقه ښکاره کوي. لکه: ( ښه، ډير ښه، خوراښه )،(سپين،ډيرسپين، لاډيرسپين ) يا زښته ډير.

## صفت دا ورسته ډولونه لري:

۱- اصلي صفت: چې ديونوم ذاتي ښه والى او بد والى ښکاره کوي.
لکه: ښه ،بد ، سپين ، تور...............

۲- نسبتي صفت: چې يو بل نوم ته يې نسبت شوى وي.
لکه: کندهاري ،يوسفزي ،کورني......

۳- عددي صفت: هغه کلمه ده، چې دهغوى په واسطه ديو شي شمير او اندازه معلوميږي. لکه: دوه ، پنځه ،لسم ، شلم، دوه لاسونه او نور.......

۴- استفهامي صفت: چې دپوښتنې په وخت کې استعماليږي او موصوف ورسره راغلى وي. لکه:
څومره غنم دې پکار دي ، کوم هلک پوه ده ،
څو کتابونه اخلې.....

۵- فاعلي صفت. لکه پالونکى ،تلونکى ، تللى ، ګرځيدلى.

۶- مفعولي صفات. لکه: ساتلى، ليکلى ،پرې شوى ،وهل شوى.

۷- اشاري صفتونه: هغه کلمې دي، چې دهغو په واسطه يونوم ته اشاره شوې وي او هغه ته اختصاص ورکړى شي.
لکه: دغه باغ د انګورو دى. دا ونه ښه سيورى لري.

۸- مجرد صفتونه: هغه ته وايي، چې په خارج کې کوم مادي وجود ونلري او خالي وصف او حالت ترې مراديږي.
لکه: ليونتوب،هوښيارتوب، روغتيا ،اوږدوالى.

يادونه: په پښتو ژبه کې صفت د خپل موصوف څخه د مخه راځي او صفت د خپل موصوف سره د جنس عدد او حالت له پلوه ګردانيږي او صفت د خپل موصوف سره سمون ښيي.

شمیر نوم(اسم عدد ) او ډولونه یې:

عدد هغه کلمه ده، چې د شیزونو شمیره بیانوي په خپلوا که توګه کومه نومونه نه کوي ،بلکې په یوه شیزنوم پورې اړه لري. خو ستاینوم غوندې یې څرنګوالی نه ښیي بلکې څومره والی او پوړوالی ښیي .

## د شمیر نوم ډولونه په دې ډول دي:

۱- اصلي عدد .لکه: یو ، دوه، درې ،څلور،پنځه........

۲- وصفي یا رتبیي عدد. لکه: لومړی ، دویم ، دریم ، څلورم......

۳- کسري عدد: چې د اړونده شیز نوم ماتوالی او برخه والی ښیي.

لکه: یو پردوه،دوه پر څلور،درې پر پنځه ، درې پر څلور........

۴- انقسامي یا تقسیمي عدد: چې مربوط شیز نوم ویشنه او جوړه کیدنه څرګندوي. لکه: یویو ، دوه دوه ، درې درې ، څلور څلور ، پنځه پنځه.........

۵- تخمیني عدد: چې د یو شیز نوم یانې معدود پر ځای غبرګ غبرګ شیز نومونه راوړي او یو هم نه ټاکي.

لکه: یو دوه ، دوه درې ، درې څلور ، څلور پنځه........

یادونه: په پښتو ژبه کې عدد تر معدود د مخه راځي او لږډیر ګردانیږي په پښتو ژبه کې ( یو او دوه ) د جنس له پلوه د خپل معدود سره سمون ښیي خو نور اصلي اعداد د خپل معدود سره مطابقت نه ښیي .لکه:

| مذکر | مونث |
|---|---|
| یو کتاب | یوه کتابچه |
| دو کتابونه | دوه کتابچې |
| درې قلمونه | درې کتابچې |
| څلور قلمونه | څلور کتابچې |

## نومځری (ضمیر):

نومځری هغه کلمه ده، چې د یو نوم ښکارندوی کوي او دنوم پر ځای استعمالیږي اویا یې دتکرار مخنیوی کوي.

ضمیر دنورو نومونو پر خلاف دجنس ، عدد او حالت سر بیره دشخص یانې متکلم ، مخاطب، غایب له پلوه هم ګردان مومي.

## د ضمیر ډولونه:

ضمیر په پښتو کې لاندې ډولونه لري:

۱- شخصي ضمیرونه: هغه ضمیرونه دي، چې عموما د اشخاصو پرځای راځي او یو له دریو اشخاصو څخه ښیي.

د استعمال له مخې شخصي ضمیرونه په دوه ډوله ویشل کیږي:

## الف: غښتلي (قوي) یا مفصل ضمیرونه:

هغه ضمیرونو ته ویل کیږي، چې یو ازې (خپلوا که ) توګه استعمالیږي او دبلې کلمې سره پیوست او

متصل نه راځي ددغو ضميرونو مفرده بڼه دو حالته لري:
يانې اصلي حالت او غير اصلي يا مغيره حالت. لکه په لاندې جدول کې:

منفصل شخصي ضميرونه:

| شخص | | | جمع |
|---|---|---|---|
| | اصلي حالت | غير اصلي حالت | |
| متکلم | زه | ما | موږ |
| مخاطب | ته | تا | تاسې |
| غايب | دی | ده- | دوی |
| | دا | دې | |

ب: کمزوري (ضعيف) يا متصل ضميرونه:
هغو ضميرونو ته ويل کيږي، چې په خپلوا که توگه کومه مانا نه ورکوي او خپله مانا او مفهوم دنورو نومونو او کلمو سره د يو ځای والي په صورت کې په ډاگه کوي.
کمزوري شخصي ضميرونه:

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ١ | مې | مو |
| ٢ | دې | مو |
| ٣ | يې | يې |

٢- ملکي يا اضافي ضميرونه:
عبارت له هغوضميرونو څخه دي، چې د يو شي ملکيت او متعلقيت بيانوي. لکه:

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ١ | زما | زموږ |
| ٢ | ستا | ستاسې |
| ٣ | دده | د دوی |
| | ددې | |

### ۳-اشاري ضمیرونه:

هغو ضمیرونه ته وایي، چې وګړو او شیزونو ته اشاره کوي.

| واټن | مفرد | | جمع | |
|---|---|---|---|---|
| | اصلي حالت | غیر اصلي حالت | اصلي حالت | غیر اصلي حالت |
| لنډ | دغه-α | دغه-ə | دغه-α | دغو |
| | دغه-α | دغي-e | دغه-α | دغو |
| لر | هغه-α | هغه-ə | هغه-α | هغو |
| | هغه-α | هغه-e | هغه-α | هغو |
| لا لر | هوغه-α | هوغه-ə | هوغه- α | هوغو |
| | هوغه- α | هوغي-e | هوغه- α | هوغو |

### پوښتني یا استفهامي ضمیرونه:

چې د اشخاصو او شیزونو پر ځای د پوښتنې په وخت کې استعالیږي. لکه:

۱- څوک (چا) څوک راغی؟ چاوویل؟

۲- کوم (کومه) کو م سړی راغی؟ کومه ښځه راغله؟

۳- کله . (مهال او زمانه پوښتي او ګردان نه لري) کله راځي؟

۴- چیرته ( ځای پوښتي او ګردان نه لري) چیرته تللی وي؟

۵- څنګه چې دیو وګړي یا شي او یا عمل څرنګوالی پوښتي.

څنګه کار دې وکړ؟

۶- څه ډیری دیو شي یا وګړي پیژندنه پوښتي او ډیری جنس نوم پورې اړه لري او ګردان نه لري

.

۷- څو چې د وګړو یا شیانو شمیر پوښتي.

۸- څومره چې ډیری د اشیاوو او وګړو شمیر او د جنس د څرنګوالي، کیفیت او مقدار پو ښتنه کوي.

۹- ولې چې دیو عمل او پیښې عامل او سبب پو ښتي.

### نا جوت یا مبهم ضمیرونه:

چې د نامعین وګړي لپاره راځي. لکه:

هر هر څلمی کار کوي

بل بل څوک راغی

نور نور شاګردان راغلل

ټول ټول هلکان درس لولي

یادونه: همدارنګه ځینې ،هیڅ او څوک هم مبهم ضمیرونه دي .

پلوي یا قیدي ضمیرونه:

چې دیو چار (عمل) او فعل سمت او پلو د وګړو (اشخاصو) له پلوه ښيي او درې ګونې بڼې لري.

| | | | |
|---|---|---|---|
| لکه : را | د متکلم لوری ښيي. | لکه: | راځم |
| در | مخاطب لوری ښيي. | لکه: | درځم |
| ور | د غایب لوری ښيي. | لکه: | ورځم. |

### کړ ول (قید ):

هغه ژبنی عنصردی، چې دیو فعل د پیښیدنې څرنګوالی ښيي. دا څرنګوالی د فعل د پیښیدلو ځای یا مهال ټاکي. ټینګار او داسې نورې ځانګړتیاوې ښکاره کوي.

### د قید ډولونه:

۱- د زمان قید (مهال) قید : چې دمهال له مخې د یو فعل پیښـیدنه څرګندوي. لکه: اوس، دمخه ،نن ،پرون......

۲- د مکان (ځای) قید : چې دیو فعل پیښیدنه د ځای ا و چاپیریال له مخې څرګندوي. لکه: دلته، هلته، مخکې، وروسته، کښته، پورته.......

۳- څرګندنې او ټینګارې قید: چې دفعل ټینګار ښيي.

لکه: په میړانه ،په څرګنده، په منډه ،په ډاګه، څه نا څه، لږ او ډېر................

۴- دشک قیود. لکه: ګوندې ، ښایي

۵- د علت قیود . لکه: ځله ځې ، ولې نه کښیني.

۶- د وضیعت او حالت قیود. لکه: ژر ژر راځه، په ورو ورو ځه..........

### فعل یا (کړ):

فعل د وینا دیو عمده جز په توګه هغه خپلواکه کلمه ده، چې په یوه زمانه کې دیو کار په کولو یا کېدلو دلالت کوي. دنوم او فعل تو پیر په دې کې ده، چې نوم زمانې پورې اړه نلري او فعل نه باید هرو مرو زمانه مرادوي.

### لاندې مثالونو ته وګورئ:

| حال زمانه | راتلونکې زمانه | ماضي زمانه |
|---|---|---|
| ذبیح خط لیکي | ذبیح به خط ولیکي | ذبیح خط ولیکه |
| لېمه درس لولي | لېمه به درس ولولي | لېمې درس ولوست |
| لطف الله کار کوي | لطف الله به کار وکړي | لطف الله کار وکړ |

په پورته مثالونو کې وګورئ چې په حال زمانه ، راتلونکې زمانه او ماضي زمانه کې کار او چار ترسره شوی دی.

### د شخص په لحاظ د فعل ډولونه:

په پښتو ژبه کې فعل د شخص څرګندونه کوي، په فعل کې د شخص د اړخ څرګندیدل هماغه تصریفي روستاړی دی، چې د فعل په اصل (ریښه) پورې نښلول کیږي. د بېلګې په توګه:

۱- متکلم فعل : زه ځم m

۲- مخاطب فعل : ته ځې - e

۳-غایب فعل : دی - ځي




په پورته فعلي ګردان کې (ام–ې-ي )د لومړي ، دوهم ، اودریم شخص مفرد حالت ځرګندوي.

**فعل دزماني په لحاظ:**

**فعل دزماني په لحاظ په دري ډوله دی:**

۱-حال زمانه ۲-ماضي زمانه ۳-راتلونکې زمانه

**۱-د حال زمانه فعل:** هغه دی،چې په اوسنۍ زمانه کې دیوکا ر په کولو دلالت کوي. لکه: لولم ،غواړم ، ګورم.......

**۲-مستقبل یا راتلونکې زماني فعل:** چې په راتلونکې زمانه کې دیو کار په کولو دلالت کوي. لکه: وبه یې لیکم، وبه یې وینم، وبه یې خورم.......

**۳-د ماضي زماني فعل:** چې په تیره زمانه کې پر یو کار دلالت کوي.

لکه: ولیده ، پاڅیده....

| مفرد | جمع |
|---|---|
| زه پاڅیدم | موږ پا څیدو |
| ته پاڅېدې | تاسې پاڅیدئ |
| دی پاڅیده | دوی پاڅیدل |
| دا پا څیده | دوی پاڅیدلې |

**فعل د مانا په لحاظ لاندې ډولونه لري:**

**۱-لازمي فعل:** هغه دی،چې یوازې په فاعل تمامیږي او مفعول نه غواړي.

| مفرد | نا تیره زمانه | جمع |
|---|---|---|
| زه پاڅیږم | | موږ پاڅیږو |
| ته پاڅیږې | | تاسې پاڅیږئ |
| دی پا څیږي | | دوی پاڅیږي |

**۲-متعدي فعل:** هغه فعل ته وایي،چې په جمله کې سربیره پر فعل او فاعل مفعول هم قبلوي.

| لکه: | نا تیره زمانه | تیره زمانه |
|---|---|---|
| زه کتاب لیکم | | ما کتاب لیکه |
| ته کتاب لیکې | | تا کتاب لیکه |

دی کتاب لیکي ده کتاب لیکه

**۳- معلوم فعل:**

که چیرې په جمله کې دیو فعل فاعل معلوم وي هغه ته معلوم فعل وايي.

لکه: ما زلمی ولیده ، زه زلمی وینم

دلیدلو فعل او اثر په زلمي واقع شوی دی.

**۴- مجهول فعل:**

که چیرې د فعل فاعل معلوم نه وي نو هغه ته مجهول فعل وايي.

لکه میاشت لیدل شوې. هلک وهل کیږي.

**۵- مثبت فعل:**

چې دیو کار په کولو باندې دلالت کوي.

لکه: زه ځم زه هره ورځ لامبم

**۶- منفي فعل:**

چې دیو کار په نه کولو باندې دلالت کوي.

لکه: زه کورته نه ځم. څوک چې درس نه وايي ناکامیږي.

نحو (Syntax)

دلغت په لحاظ نحو د عربي ژبې کلمه ده، چې په پښتو کې ورته وینا پوهنه وايي او په انګلیسي ژبه کې یې سنتکس Syntax بولي.

په نحو کې دمفردو کلمو دیو ځای کیدو، د جملو جوړښت او قاعدې، په جملو کې د کلمو ترتیب یو له بله ارتباط او نور حالات ښودل کیږي.

جمله Sentence

د مورفیمونو او کلمو یو داسې ترتیب شوې مجموعه ده، چې یو بشپړ مفهوم او مطلب پرې پوهول کیږي.

دا چې خبرې یا وینا په جملو کیږي نو داسې یې هم پیژندلای شو:

جمله: دخبرو وینایا ګړهار هغه بشپړه خپلواکه رغاونه ده، چې ترې بله ستره رغاونه نشته. په بله وینا جمله د خبرو او وینا تر ټولو لوی واحد دی.

په پښتو ژبه کې یوه جمله د فاعل، مفعول، فعل او نورو اړونده توکونو څخه جوړښت مومي او په دې ډول پر دوو برخو ویشل کیږي.

چې یوه ته نوموال (اسمي) اوبل ته یې کړوال (فعلي) غونډ وايي.

د پازې او دندې له مخې نوموال غونډ ته اینبی (مسندالیه) او مبتدا یا نهاد او کړوال غونډ ته اینښونی (مسند) یا خبر یا ګذاره هم ویل کیږي.

نودجملې اساسي برخې مبتدا او خبر دي. چې په ساده جملو کې مبتدا او خبر او یا دواړه د جملې اساسي برخه او بنسټ تشکیلوي. لکه:

۱- زده کونکي درس لولي.
۲- نجيب لاړ.
۳- ماهيان د درياب په زړه کې نښيدل.
په پورته جملو کې: زده کونکي ، نجيب ، او ماهيان مبتدا او لولي ، لاړ او نښيدل د خبر په توګه راغلي دي.

مبتدا:

د جملې اساسي برخه ده او معمولاً د يو شخص يا يو شي په باره کې معلومات ورکوي دجملو د جوړښت له مخې دا ويلای شو چې: نوم، ستاينوم، شمير نوم، ضمير او د کلام نورې برخې د مبتدا په حيث راتلای شي.

خبر:

دجملې د اساسي اجزاوو په دوهمه برخه کې خبر راځي په خبر کې فعل د خپلو اړوندو توکونو سره راځي په دې توګه ټول لوی او واړه يا خپلواک او نا خپلواک توکونه په يوه جمله کې را غونډيدای شي اود همدغه توکونو په کموالي او زياتوالي سره وړې يا لويې جملې مينځ ته راځي.

عبارت:

دوې يا ډيرې خپلواکې کلمې، چې يوه دبلې تابع شي او مرکب مفهوم افاده کړي عبارت بلل کيږي. په عبارت کې يوه کلمه اساسي او بله کلمه يې تابع وي. لکه: د(شين اسمان) په عبارت کې (اسمان) اساسي کلمه او د(شين) کلمه د هغه تابع ده.
بايد وويل شي، چې عبارت هيڅکله د جملې ځای نه شي نيولی دا ځکه چې عبارت پوره مطلب نشي بيانولی او هميشه نيمګړی مطلب را په ګوته کوي.

د جملې مانيز ډولونه:

په پښتو کې د جملې مشهور قسمونه دا دي:
۱- امريه جمله: چې په کښې د يو کار کولو حکم او غوښتنه شوې وي.
لکه ډوډی وخوره. دروغ مه وايه.
۲- پوښتني يا استفهامي جمله: هغه جمله ده، چې له چا څخه د يو کار يا يو حالت د پوښتنې په وخت کې ويل کيږي. کله ورسره د پوښتنې ادات راځي او کله نه او يوازې د آواز آهنګ او فشار په وسيله پيژندل کيږي.
لکه: ايا ستا ورور راغلی دی؟
خط دې ورته وليکه؟
ستا کور چيرې دی؟
۳- بيانيه جمله: هغه جمله ده، چې دبلې جملې حال بيانوي. لکه:
پرون مې واوريدل، چې د پښتو کاميابانو ته انعام ورکوي.
۴- خبري جمله: چې دیو شي د حال او کيفيت څخه حکايت کوي. لکه:
دغه سړی زمرک نو ميږي.
زما کور په کابل کې دی.

۵- ندایه جمله: چې د غږ کولو او خطاب په وخت کې منځ ته راځي او دا هغه جمله ده، چې د ندا حرف پکې وي: لکه: او هلکه ! یو ګیلاس اوبه راوړه.
۶- تمنایي جمله: هغه جمله ده، چې د تمنا دا داتو او فعل نه جوړیږي او د یو شي هیله او ارمان پکې څرګند شوی وي. لکه: کاشکې ته هم راغلی وای !
ارمان چې توریالی دلته وای !
۷- قسمتي جمله: هغه جمله ده، چې د قسم او لوړې کولو په وخت کې استعالیږي. لکه: قسم که دې پریږدم. په خدای که رانه خلاص شې.
۸- تعجبيي جمله: هغه جمله ده، چې د تعجب او حیرانتیا د څرګندولو لپاره استعمالیږي. لکه: څه ښکلې منظره ده ! څه رنګ رنګ غرونه دي !
۹- شکي او احتمالي جمله: هغه جمله ده، چې د شک او احتمال ښودلو لپاره کارول کیږي. لکه: ښایي احمد راغلې وي.
۱۰- تأکیدي جمله: هغه جمله ده، چې د تأکید لپاره استعالیږي. لکه:
خامخا به بریالی وینې. هرو مرو به موږ کره راځې.

**د جملې جولیز ډولونه:**

د جولې او څومره والي له مخې جمله په لاندې ډولو ویشل کیږي:
۱- یو ستوې (ساده مفرده) جمله:
هغه راز جمله ده، چې له مبتدا او خبر څخه جوړه شوې وي. یو ستوې جمله بیا په دوه ډوله ویشل کیږي:
آره یو ستوې جمله: چې مبتدا یې له یوه فاعل یا مفعول او خبریې له یوه فعل او د متعدي فعل په ترڅ کې له یو مفعول او فعل څخه جوړ وي.
لکه: زمرک ځي. زرک اوبه څښي.
زما یو ملګری هیڅکله خپل کورنی کار نه هیروي.
ارته یو ستوې یا پراخه جمله: چې مبتدا او خبر یې له دوو توکونو څخه تیری وکړي او په دې توګه پکې زیات ارتوالی راشي. لکه:
دافغانستان اسلامي دولت یو کلتوري ډله دامریکا په بلنه هغه هیواد ته سفر کوي او نور..............................
غبرګه جمله: هغه جمله ده، چې د یوه مبتدا او یوه خبر پرځای دوه ، دوه مبتدا او خبر ولري. یا په بله وینا:
که د یوې پوهې او مطلب د بشپړتیا یا د دوو اړوندو مطلبو د څرګندونې له پاره سره دوې جملې په کوم ارتباطي ادات غبرګې او ملګرې راشي.
یوه غبرګه جمله منځ ته راوړي، چې یوه یې آره یا خپلواکه او بله یې څېرمه (فرعي) یا بې واکه بلل کیږي.
لکه: زما زوی اوه کلن (دی) او لور مې شپږ کلنه ده.
که شمال نه وي ــ ونه نه ښوریږي.

سمسور ایران ته لاړ ـ چې ځان ته کار مزدوري پیدا کړي.
چې ته راغلې ـ زه به ولاړ شم.

## د ادب او ادبیاتو پیژندنه

د ادبیاتو د تعریف او پیژندني په باب ډېر څه ویل شوي دي.
دعربي او خراساني پوهانو په اند :
ادب په لغت کې پوهې،زیرکی، اخلاقي تهذیب او فضیلت ته ویل کیږي. او په اصطلاح کې ادب هغه پوهه او ریاضت دی، چې انسان ته فضیلت ورپه برخه کوي او په خپلو کړو وړو کې یې له سهوې او ښو ښېدنې څخه ژغوري.
ددغو پوهانو په عقیده ادب پر دوه ډوله دی:
۱- فطري ادب: چې په ښو خویونو او معاشرتي تهذیب پورې اړه لري.
۲-اکتسابي ادب: چې له نورو خلکو څخه زده کیږي او د بلیغې وینا لارې چارې ښیي. اوسني ادبي کره کتونکي د ادب په برخه کې پر دغسې یادونو قناعت نه کوي.
لومړی دا چې ادب د اخلاق پوهنې(Ethics ) له پلوه بېله مقوله ده او دښکلا پوهنې(Aesthetics ) له نظره بله مقوله ده.
دلته زیار ایستل شوی دی ، چې اخلاقي او استیتیکي مقولې سره توحید کړي.
دوهم دا چې اخلاق فطري نه دي ، بلکې دبلیغې وینا په څیر اکتسابي دي او له ټولنې څخه زده کیږي.
دیادو شویو پوهانو په نظر ادبي علوم هغو پوهنو ته ویل کیږ ي، چې د بلیغې وینا لارې چارې او اصول راښیي.
دوی د ادب د وېش په برخه کې یو شانته نظر نه لري ،ځیني یې پر اتو څانګو ، ځیني یې پر دولسو او ځیني نور یې پر څوارلس څانګو وېشي، ځیني پوهان د ادب دعلم اصول او فروع سره جلا کوي.
دادب د علم اصول دادي: لغت، صرف،نحو ،اشتقاق،معاني،بیان،بدیع، عروض او قافیه.
دادب د علم فروع دادي: خط،نقدالشعر(قرض الشعر )،انشاء،محاضرات، تاریخ او قصص،انساب،مسالک او ممالک،امثال،دواوین،اغلوطات او روایات د ادبیاتو کلاسیک مفهوم او ارزښت ؤ ،چې د عربي او خراساني پوهانو له نظره څرګند شو.
په لویدیځه نړۍ کې ادبیات(Literature ) د ټولو چاپي آثارو مجموعې ته ویل کیږي. د بېلګې په توګه طبي ادبیات هغو ټولو چاپي آثارو ته ویل کیږي،چې د طب په باره کې لیکل شوي وي.
که ادبیات د چاپي آثارو په مانا واخلو نو په هغه‌صورت کې به دادبیاتو په تاریخ کې د فزیک،هندسې،جغرافیې،منطق او داسې نورو پوهنو په باره کې هم معلومات ورکوو ، په داسې حال کې،چې دادبیاتو په تاریخ کې یوازې په ژبنیو هنري اثارو باندې بحث کیږي.
کله کله په عام مفهوم دیوې ژبې ټولو لیکلو آثارو ته هم ادبیات ویل شوي دي.خو اوس یې دغې لفظي او اصطلاحي تعبیر بدلون موندلی او ادب د اجتماعي علومو او فنونو دیوې سترې او مهمې څانګې په توګه هغه ژبنی هنر او فن دی،چې ټولنیز واقیعتونه او حقایق په کې د ژبې په وسیله د

ذهني تصويرونو او انځورونو له لارې څرګندېږي ،که څه هم د ادبپوهانو له خوا په دې باره کې، چې ادب څه شي ته ويل کيږي؟
يو واحد او منل شوی پيژند (تعريف) نه دی وړاندې شوی،چې هر چېرې د هر چا له پاره د منلو وړ وي خو ډېری ادبپوهان ادب داسې تعريفوي:
ادب يو ژبنی هنردی،چې واقيعتونه په انځورونو کې وړاندې کوي.
د انځور (تصوير يا ايماژ) څخه مقصد دادی،چې ادب واقيعت کټ مټ او په مستقيمه توګه نه بيانوي، بلکې د ادبي اثر د ليکونکي له خوا په ښکلي او احساس پاروونکي شکل وړاندې کيږي. يا په بله ژبه نوښتګر (شاعر يا کيسه ليکونکي) له واقيعت څخه خپله انطباع او برداشت په عاطفي بڼه انځوروي.
دهمدې مفکورې په اساس ويل کيږي،چې بيا جوړونه (بازآفريني) د ادب او په عام ډول د هنر يوه مهمه ځانګړنه ده. د ادب دغه ځانګړنه دتخيل په مرسته تر سره کيږي.
دادبي اثر (شعر،کيسه،ډرامه،طنز او داسې نورو ) تر ټول عمده خاصيت د احساس انتقال دی. که يو ادبي اثر احساس ونه لېږدوي او داورېدونکي يا لوستونکي پر عواطفو اغېزه ونه کړي نو هغه ادبي اثر نه دی.
ادبپوهانو د محتوی له مخې ادبيات پر دوو سترو برخو ويشلي دي:

1. تخليقي ادبيات
2. تحقيقي يا څېړنيز ادبيات

تخليقي هنري يا (بديعي) ادبياتو ته اصلي او واقعي ادبيات وايي.
چې په هغو کې (شعر،لنډه کيسه، ډرامه،ناول،رومان،ادبي ټوټې،طنز او نور) شامل دي.
تحقيقي يا څېړنيز ادبيات دادبي آثارو د ماهيت، منشأ ، تکامل او څرنګوالي په باره کې څېړنې کوي. تحقيقي ادبياتو ته ادبپوهنه يا ادبي څېړنې ويل کيږي يا په بله ژبه تخليقي ادبيات ژبني هنري آثار دي او تحقيقي ادبيات د دغسې آثارو په باره کې بحث او څېړنه ده.

## نظم او نثر

نثر: په لغت کې پاشلو،شيندلو،تيتولو او خورولو ته وايي او په اصطلاح کې هغه کلام دی،چې د وزن له قيده څخه خالي او آزاد وي.
په خبرو اترو کې نثر دشعر او نظم نه ړومبی دی، خو د پښتو ادب په لاس ته راغلو ليکلو آثارو کې شعر د نثر څخه دمخه ميندل شوی او لاس ته راغلی دی.
دنثر لومړی اثر چې زموږ په تذکرو کې د هغه نوم ذکر شوی هغه د محمد هاشم سرواني د ((سالو وږمه)) نوميږي،چې ورک دی.
بيا په (612) هجري کال کې د سليمان ماکو تذکرة الاولياء څو پاڼې پيدا شوي دي.
ددې سند نه وروسته د روښانيانو په وخت کې مسجع نثر د ميا روښان او اخون درويزه له خوا را

منځ ته شوی دی.
د (1000)هجري نه وروسته ورځ په ورځ نثر ساده شوی او هم يې پرمختيا موندلې او تکامل يې کړی دی ، چې ددې لوی اديب او مبتکر په خپله خوشحال خان ؤ ،دنثر دا دوره تر (1300)هجري پورې رارسيږي.
په اوسنۍ دوره کې د مولوي احمد ،منشي احمد جان،مير احمدشاه رضواني او راوروسته د ماسټر عبدالکريم ،قيام الدين خادم،عبدالحی حبيبي، ګل پاچا الفت، صديق الله رښتين، عبدالرؤف بېنوا ، عبدالشکور رشاد او د کوزې پښتونخوا ليکوالانو نثر ساده او روان دی.

## نظم:

نظم په لغت کې د مرغلرو پېيلو ته وايي. او په اصطلاح کې هغه کلام دی، چې موزون او قافيه وال وي. يا په بل عبارت: نظم د هنري ادبياتو هغې برخې ته وايي،چې په اشعارو کې مختلف مفاهيم پراته او د نثر نه يې توپير وشي.

## شعر:

عربو شعر داسې تعريف کړی دی:
شعر په لغت کې پوهې او خبرېدو ته وايي. اصطلاحاً هر بليغ کلام او سپېڅلې خوندورې وينا ته چې وزن او قافيه ولري شعر وايي، نو وزن او تول د شعر مهم رکن دی.
صديق الله رښتين شعر داسې راپېژني:
شعر د هغو لطيفو ، نازکو احساساتو ، تخيلاتو او هغو معانيو څخه عبارت دی،چې د موزونو او رنګينو الفاظو په جامه کې راوړل شي.
دالفت صاحب په وينا :
شعر هغه وينا ده،چې الفاظ يې ښکلي وي او ويونکي په کې فکر،پوهه، ذوق ، د زړه هيجان او د روح آغېزه سره ګډه کړي.
محمد صديق روهي شعر داسې راپيژني:
د آهنګ لرونکو عبارتونو په واسطه د واقيعت تخيلي او بيا ځلي انځورولو ته شعر ويل کيږي.

## د احسان طبري په اند شعر د څلورو ضروري شيانو درلودونکی وي:

1- مفکوره (انديشه)
2- احساس
3- تخيل
4- آهنګ او وزن

## د شعر ډولونه:

### پښتو ژبه دوه ډوله شعرونه او نظمونه لري:

چې يوډول يې اولسي او ملي شعرونه دي،چې ځانته خاص ملي وزن لري.
لکه: لنډۍ،ناري، کاکړې غاړې،نيمکۍ،بګتۍ،چاربيتې،بدلې او نور.
همدارنګه دوړې،متلونه،دکمکيانو وزمينې سندرې،ساندې،فالونه، للوګانې او نور هم داولسي ادب په چوکاټ کې راتلای شي.

بل ډول يې ديواني او عروضي شعرونه دي، چې د عربي او فارسي سره برابر په يوه قاعده ويل شوي دي.
په عروضي ډوله شعرونو کې: قطعه، رباعي، غزل، بوللـه يا قصيده، مثنوي، مربع، مخمس، مسدس، ترکيب بند، ترجيح بند او نور شامل دي.

## پښتو ادبياتو تاريخ

### دادب تاريخ پيژند(تعريف):

ادب تاريخ په عامه توګه د نړۍ او په خاصه توګه د يو هېواد او مليت د ادبياتو د پرمختګ لړۍ مطالعه او ترڅېړنې لاندې نيسي، کوم چې د تکامل په مختلفو ټاکلو او ځانګړو دورو او مرحلو کې څرګند شوي وي او همدارنګه د ځانګړو ليکوالانو اثار هم تر تحليل او څېړنې لاندې نيول کيږي.
يا په بله وينا:
ادب تاريخ په مختلفو سياسي، ټولنيزاو اقتصادي پېښو کې د ادب پرمختيايي جريان تر څېړنې لاندې نيسي او په دغه جريان کې د مختلفو آثارو ارزښت او مقام ټاکي.
په لنډ ډول ويلی شو، چې ادب تاريخ د ادبي جريان پرمختګ او مختلفې پديدې او ټاکلې دورې تر څيړنې لاندې نيسي.

### د پښتو د ادبي تاريخ دورې

دادبي دورو وېش د پاره بايد يو منطقي معيار وټاکل شي، ددغه معيار له مخې بايد د هرې دورې ځانګړتياوې وښودل شي، که چېرې هماغه معيار په ټولو ادبي دورو باندې د تطبيق وړ نه وي، نو دادبي دورو تصنيف خپل اعتبار او ارزښت له لاسه ورکوي.
د پښتو ادبي تاريخ ليکونکو: (علامه عبدالحی حبيبي، استادصديق الله رښتين، نور محمد غمجن، دوست شينواری، محمد انور نوميالی، محمدصديق روهي...) دادبي دورو د ټاکلو دپاره د بېلو بېلو معيارونو څخه کار اخيستی دی، چې ددغو پوهانو او استادانو کار د قدر وړ دی.
د سرمحقق محمد صديق روهي د پښتو ادبياتو تاريخ (معاصره دوره) اثرکې د پښتو ادبي تاريخ په دريو عمده دورو وېشل کيږي.
1- لرغونې دوره
2- منځنۍ دوره
3- معاصره (اوسنۍ) دوره
هره دوره په پړاونو وېشل کيږي.

### لرغونې (پخوانۍ) دوره:

د تحريري اسنادو له مخې په ادبي تاريخ کې دغه دوره د امير کروړ سوري څخه پيليږي، چې د امير پولاد سوري زوی ؤ، چې په کال (139) هجري سنه د غور په مندېش کې امير شو او جهان پهلوان يې باله.
د پښتو ادب تاريخ دغه دوره تر شپاړسمې ميلادي پيړۍ پورې دوام کوي يانې د بايزيد روښان تر ظهور او پاڅون پورې رسيږي.

په شپاړسمې میلادي پیړۍ کې د پښتونخوا په ختیځه برخه کې د هند مغلي سلطنت په زمانه کې فیوډالي تولیدي مناسبات منځ ته راځي او په ادبیاتو کې هم بدلون لیدل کیږي.
دپخوانۍ دورې عمده موضوعګانې دنمانځنې سندرې ، ویاړنې (قومي تفاخر) ، ویرنې ،مینه ،بېلتون او اخلاقي ښوونې دي،چې په هغو کې پیچلي تخیلات او لفظي صنایع چندانې نه لیدل کیږي.
د غوریانو د واکمنۍ په دوره کې قصیدې جوړونه یو نوی پړاو ګڼل کیږي. که څه هم قصیدې له درباري ادب سره نږدېوالی لري،خو په هغو کې د پښتنو قبیلو مشران او واکمنان د یووالي او قبیلوي قدرت د سمبولونو په توګه ستایل شوي دي.
شاعر د صلې او انعام د اخستلو له پاره شعرنه وایي،او نه په ستاینه کې له اغراق نه کار اخلي،د پښتو د لرغونو آریایانو د سندرو وزن ساتي،تر اوسه پورې پښتو شعر همدغه ځانګړتیا ساتلې ده ، یانې د شعر وزن د څپې (فشار ـ اکسینټ) او دهجاوو (سیلابونو) د شمېر په اساس ټاکل کیږي.
دپښتو ډېر زوړ او پخوانی شعر چې زموږ لاس ته راغلی دی دامیر کروړ سوري یو حماسي (Epic ) شعر دی ،چې پټې خزانې د تاریخ سوري په حواله خوندي کړی دی ، دهمدې لاس ته راغلې حماسي شعر په استناد موږ د پښتو ادب تاریخ لرغونې دوره د (100) هجري څخه شروع کیږي. داسې ښکاري چې په سوریانو کې دپښتو شعر د اسلام له ابتدا څخه موجود ؤ ،ځکه چې د امیر کروړ د ژوند وخت پس له سل هجري څخه شروع کیږي.
ویاړنه د امیر کروړ جهان

زه یم زمری پردې نړۍ له ما اتل نشته
په هندوسندو پرتخاراوپر کابل نشته

بل په زابل نشته
له ماتل نشته

غشی دمن مې ځي بریښنا په مېرځمنو باندې
په ژوبله یونم یرغالم پرتښتېدنو باندې

په ماتېدو نشته
له ما اتل نشته

زمادبریو پرخول تاوییږي هسک په نمنځ وپه ویاړ
داس له سوو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ

کړم ابو ادونه ویجاړ
له مااتل نشته

زمادتورې ترشپول لاندې دي هرات وجروم
غرج وبامیان و تخار بولي نوم زما په اودوم

زه پیژندو یم په روم
له ما اتل نشته

پرمرو زما غشي لوېږي ډاري دښمن راڅخه

دهریوا د رود پرڅنډو ځم تښتي پلن را ځخه

رېږي زړن را ځخه
له ما اتل نسته
د زرنج سوبه مې د توري په مخ سور وکړه
په باداری مې لوړاوی د کول د سور وکړه

ستر مې تربور وکړه
له ما اتل نسته
خپلو وګړو لره لور پیرزوینه کوم
دوی په ډاډ ینه ښه بامم ښه یې روزنه کوم

تل یې ودنه کوم
له ما اتل نسته
پرلو یوغرو مې وینا دروميي نه په ځنډو په تال
نړۍ زماده نوم مې بولي پردریځ ستایوال

په ورځو شپو میاشتو کال
له ما اتل نسته

د پښتو دا زوړ شعر، چې دهجري دوهمې پیړۍ له لومړۍ برخې ځخه را پاتې دی د ژبې اداء، لغاتو او کلماتو له مخې مخصوص رنګ لري او زموږ د اوسنۍ ژبې له محاوروي جریان سره توپیر لري. ډېر داسې لغات او سوچه کلمات په کې راغلي دي، چې اوس متروک او په عمومي محاوره کې نه استعمالیږي.

ددې شعر له لساني پلټنې ځخه دا نتیجه په لاس راځي، چې په هجري لومړۍ او دوهمه پیړۍ کې پښتو ژبه د نورو ژبو له اختلاط سوچه او تر (400) هجري پورې یې دا سوچه توب او نګه والی ساتلی دی.

دمانا له پلوه هم دا لومړی شعر د حماسي اشعارو ځخه، چې د دنیا د ادب یوه غوره برخه ده دا یو برجسته او غوره نښه ګڼل کیږي. د شاعر لوړ حماسي مقام او دده د توري غلبه او برې ښه تصویر کوي. شاعر د خپل پاخه شعر او غښتلې قریحې په مرسته خپله ویاړنه په داسې ډول کوي، چې یو توانا او مقتدر شاعر ته ښایي له دغې ویاړنې ځخه د امیر کروړ مینه او د خپل تېر د پالنې احساسات ښه ځرګندیږي.

د شعر عروضي کیف او وزن دا ځرګندوي، چې پښتو ژبې پخوا د عروضو او بحر له پلوه هم پاخه اشعار درلوده او دغه مخصوص بحور له خورا زړې زمانې ځخه په شعر کې موجوده وه.

په پایله کې دا ویلای شو، چې ددې شعر د ویلو پروخت پښتو په غور کې خپل ادبي پوخوالي ته رسېدلې وه. پښتو تردې شعر دمخه باید ډېر ادبي مراحل تېر کړي وي، چې د (100) هجري کال په شااوخوا کې دې پوخوالي او متانت ته رسېدلې وي.

داچې موږ د امیر کروړ له کښلي شعرنه د مخه بل لیکلی منظوم یا منثور اثر په لاس کې نه لرو. ددې خبرې دلایل ډېر دي، خود ډېرونه یو دلیل یې دادی، چې د تاریخ په اوږدو کې افغانستان تل د بهرنیو

یرغلګرانو تاڼوبې ؤ، نوممکن ددې تېریو او حملو له کبله دپښتو ژبې آثار له منځه تللي وي. دا خبره یوازې د پښتو ژبې دادب په هکله نه بلکې دنورو خویندو ژبو په باب هم ویلی شو.

## دپښتو ادب تاریخ لرغونې دورې ځنې نور شاعران او لیکوالان:

### هاشم زید سروانی:

له امیر کروړ نه وروسته هاشم زید سروانی د هلمند په سروان په سنه (223هه) کې زېږېدلی او په بست کې یې د علماؤ او فصحاوو څخه لوستنه وکړه.

داستاد حبیبي په قول: د هلمند سروان دهلمند د غاړو د هغو ښارو پورې اړه لري، چې په هغو وختونوکې یې رونې مدنیت درلود او اوس وران دی.

ابومحمد هاشم په پښتو ژبه یو کتاب کښلی دی، چې (سالو وږمه) نومېده او د عربي ژبو د اشعارو دفصاحت او بلاغت بیان په کې شوی دی.

نوموړي په عربي، فارسي او پښتو ژبه شعرونه ویل چې یوه بېلګه یې داده:

ژبه هم ښه وینا کاندې چې یې وینه
دخاوند په لاس کې زر او درهمونه
ژبور ورله ورځي وینا یې اروي
د درهم خاوندان تل وي په ویاړونه

### شیخ بیټني (ح):

د پښتنو په لرغونو او سېدنځایونو کې یوه ډېره مشهوره تاریخي سیمه د سلیمان د غرونو لمنې دي. دغه د سلیمان غرونه په ځینو کتابونو او تاریخي اثارو کې د (کسې غره) په نامه هم راغلي دي.

دکسې د غره په لمنو کې د روزل شویو شاعرانو په ډله کې ترټولو معلوم پخوانی سړی شیخ بېټني دی، چې دژوند زمانه یې د دریمې هجري پیړۍ شااو خوا ټاکل کېدای شي او کېدای شي د (350 هه) کال په شااوخوا کې مړ وي.

د شیخ بیټني یو مناجات سلیمان ماکو په تذکرة الاولیاء کې راوړی دی. چې د پښتو د زړو اشعارو په لړ کې ډېر مهم شعر دی.

د شیخ بیټني مناجات دادی:

لویه خدایه، لویه خدایه
ستا په مینه په هر ځایه
غرولاړ دی درناوي کې
ټوله ژوي په زاري کې
دلته دي د غرو لمنې
زموږ کېږدۍ دي په کې پلنې
دا وګړي ډېر کړي خدایه
لویه خدایه، لویه خدایه

دلته لږ زموږ اوربل دی
وړ کوګی دی ووړ بورجل دی
مینه ستا کې موږ مېشته یو
بل د چا په مله ڼه نه یو
هسک او مځکه نغښته ستاده
دمـــــړو وده لـــه تـــا ده
داپالنه ستاده خدایه

لویه خدایه، لویه خدایه
دلرغونو شاعرانو په لړ کې شیخ اسعد سوري، چې د محمد زوی ؤ، چې په کال (420 هه) په بغن کې وفات شو.
ښکارندوی غوري، چې د غوریانو د سلطنتي کورنۍ پیاوړی شاعر او ادیب دی، د سلطان شهاب الدین غوري په زمانه کې یې ژوند کاوه (580 هه). نوموړی د احمد زوی دی. په پټه خزانه کې دده یو ښکلی شعر، چې پښتو ادب پرې ویاړي راغلی. دا شعر تقریباً (45) بیته کیږي مطلع یې دا ده:
د پسرلي ښکلونکي بیا کړي سینګارونه
بیایې ولونل په غرونو کې لعلونه ..
ملکیار غرشین د ښکارندوی هم عصر دی (580 هه). بېلا بېل مؤرخین لیکي، چې دی په ډهلي کې اوسېده او تر (581 هه) په هغه جنګ کې هم لیدل شوی، چې سلطان لومړی پلا په ملتان یرغل وکړ او په ډهلي کې وفات او د شیخ ابوبکر طوسي د مزار ترڅنګ ښخ دی.
دده یو شعر چې د جنګ په ډګر کې یې زمزمه کړ:

| | | |
|---|---|---|
| څښتن مو مل دی | اوس مو یرغل دی | هېوادمومل دی |
| غازیانو ګوری | څښتن مو مل دی | |
| توري تېرې کړئ | دښمن مو پرې کړئ | منګولې سرې کړئ |
| څله به تښتو | څښتن مو مل دی | |
| که ټینګ کړو زړونه | په بري یونه | چې زمري یونه |
| اسلام راڅخه | څښتن مو مل دی | |
| غازیانو راسی | ټول شا او خوا سی | د شهاب په ملا سی |
| دښمن مو غوڅ کی | څښتن مو مل دی | |

د ملکیار غرشین په دې رزمي سندره کې د اسلامي فاتحانو ستاینه شوې ده او د اسلام په تنګه د جنګېدونکو لښکرو د هڅولو او پارولو هڅه په کې شوې ده.
ملکیار غرشین د سلطان شهاب الدین غوري د زمانې سړی دی. کله چې سلطان شهاب الدین غوري د اسلامي فتوحاتو په منظور پر هندوستان لشکرکشۍ کولې نو دغه شاعر او عارف هم دده ملګری و.
تیمني:
دی هم د ملکیار غرشین او ښکارندوی هم عصر شاعر دی. د تیمني د قوم چې تخلص یې هم تیمني دی. د (580) په شا او خوا کې تېر شوی دی. دی د غوري غیاث الدین معاصر ؤ په زمیندا ور کې اوسېده.
د تایمني په نامه دا شعر په ملي وزم

نن زه غرېږم په صفت د سلطان
چې دی بادار غازي ملک د جهان

د فېروز کوه او غور رڼا له ده ده
هم د تېرو تورو برېښنا له ده ده
چې توره وکاږي چړتون کي خالي
غليم يې کله کړي په توره سيالي
غياث الدين د غور زمری عاليشان
د اسلام دين دده په توره روښان

## قطب الدين بختيار:

د پلار نوم يې احمد او دموسی لمسی دی. دی يو عابد ، عارف او فاضل شخص ګڼل شوی دی. په قوم بختيار پښتون دی. او دده نيکه موسی هند ته تللئ ؤ نو ځکه دده لمسی قطب الدين په هند کې ډېر شهرت لري. دی په (633 هه) کال او د بل روايت له مخې په (634هه) کال د عمر په (48) کال او په ډهلي کې ښخ شو، چې تر اوسه يې مزار ډېر مشهور دی.

دده د شعر يوه نمونه:

وير مې زړه سوری کړ راته وګوره ملوکې
په بېلتون کې دې وباسم له خوږمنه زړګي کوکې
راته وګوره ملوکې
غوړه ولی دې اوربل دی اور زما په زړګي بل دی
زه بختيار خاورې ابرې شوم په اورسوی مې ګوګل دی
راته وګوره ملوکې

## شيخ متي:

د لرغونې دورې يو بل يا دشاعر شيخ متي دی. دی د شيخ عباس زوی دی په (623 هه) کې زېږېدلی دی او بيا په (688 هه) کال د (65) کالو په عمر وفات شوی دی.
دی په کلات بابا هم شهرت لري، چې په هماغه غونډۍ کې دفن دی.
((خدای مينه)) په نوم کتاب يې ډېر شهرت لري، ځکه چې دده په قبر به پروت و او هر چا به لوسته ، خو له بده مرغه، چې اوس ورک شوی دی.محمد هوتک په پټه خزانه کې دده يو شعر راخيستی چې

## لولويې:

خاونده ښکلی ستا جمال دی ښکاره يې لور په لور کمال دی
که ورځ که شپه، که پيړۍ کال دی ستا د قدرت کمکی مثال دی
ســـتا دنـورونو يوه رڼا ده دلـــته چې جـوړه تماشا ده
ټول ستاد ياد نارې سورې دي
د استاد مينې ننداري دي
دلته لوی غرونه زرغونيږي د ژوند وږمې په کې چليږي
بوراوې شاوخوا کرېږي ستر ګې ليدو ته يې هيښيږي

لو یه خاونده، ټوله، ته یې
تل دنړۍ په ښکلېده یې

لرغوني دورې پورې مربوط نور شاعران هم لرو . لکه:
باباهوتک ، شیخ ملکیار هوتک، اکبرزمیند اور غزلبول شاعر، شیخ ملي ، سلطان بهلول لودي، خلیل خان نیازی، کجوخان رانیزی، شیخ محمدصالح، زرغون خان، بابرخان، دوست محمد کاکړ او نور . چې د هر یو ژوندلیک او د شعرونو راوړل دلته موضوع اوږدوي.
دښځینه شاعرانو څخه به د زرغونې او رابعې یادونه وکړو :

## زرغونه کاکړه:

په پښتنې ښځینه وو شاعرانو کې زرغونه لومړنۍ شاعره ده، چې شعرونه یې موندل شوي دي ، کېدای شي دا لومړنۍ شاعره نه وي او له دې څخه دمخه هم شاعرانې تېرې شوي دي .
دا وخت مشهوره شاعره چې تقریباً د (900 ه ) په شاوخوا کې تېره شوې ده، دملادین محمد لور وه او د سعدالله خان نورزي مایینه وه . په قوم کاکړه او د کندهار د پنجوایي اوسېدونکې وه. ښکلی خط یې درلود او د سعدي بوستان یې په پښتو نظم ترجمه کړی دی. د پټې خزانې څخه یې د مثنوي یو څو بیتونه دلته رانقلوو:

| | |
|---|---|
| اوربدلي مې قصه ده | چې له شاتو نه خوږه ده |
| داختر په ورځ سهار | بایزید چې ؤ رویدار |
| له حمامه را وتلی | په کوڅه کې تېرېدلی |
| ابرې خاورې چاله بامه | راچپه کړلې ناپامه |
| مخ او سرېې سوککړ | په ابرو په خاورو خړ |
| بایزید په شکرکښنو شو | دخپل مخ په پاکېدو شو |
| چې زه ورېم د بل اور | چې په اور کې سم نسکور |

## رابعه:

رابعه د پټې خزانې دلیکنو سره سم د ظهیرالدین محمد بابر (937 هه.ق مړ) د زمانې شاعره وه ، په کندهار کې اوسېده او د اشعارو دیوان یې درلود .

### ددې شاعرې دغه لاندې رباعي پټې خزانې راوړې ده:

| | |
|---|---|
| آدم زادیې زمکې وته ستون کا | په اور دغم یې سوی لړمون کا |
| دوزخ یې روغ کا ،پرمخ د زمکې | نوم یې دهغه دلته بېلتون کا |

ددې یوې رباعي پرته ددې نور اثار موږته نه دي معلوم. اما له دې یوې رباعي څخه یې هم دوینا قدرت ښکاري او دا راښیي چې رابعې به په خپل دیوان کې عشقي موضوعات په خورا ادبي نزاکت او لطافت بیان کړي وي.

## بي بي نیکبخته:

دا مېرمن نېکبخته د شیخ الله داد لور وه، چې پلار نیکه یې په اشنغر کې اوسېدل په (951 هه-ق )

کال له شیخ قدم سره واده وکړ. مېرمن نېکبختـه زاهده، پرهیزګاره او عالمه ښځه وه. په (969هـ-ق) کال یې د (ارشادالفقراء) په نامه یو کتاب لیکلی ؤ، چې درې ټوټې ترې محمد هوتک په

پټه خزانه کې اخیستې دي، د یوې ټوټې څو بیته دادي:

په زړه ښادشې اې مؤمنه په ظاهر په باطن سپینه
ظاهر زهد په اخلاص کړې په زړه ټینګ شه له یقینه
شکر صبر په هر حال کړه خودنمای مه شه خودبینه

د مېرمن نېکبختې لاس ته راغلې منظومې ټوټې تبلیغي رنګ لري ، نصایح او پندونه یې په دې اثر کې وړاندې کړي دي.

## دپښتو ادبیاتو تاریخ دوهمه (منځنۍ او کلاسیکه) دوره:

دپښتو ادبیاتو د تاریخ دوهمه دوره، چې منځنۍ (متوسطه) دوره هم ورته ویلای شو، دلسمې هجري پېړۍ له اواسطو پیل کیږي او دڅوارلسمې هجري پیړۍ ترلومړیو دوو دریو لسیزو پورې رارسي.

دپښتو ادبیاتو منځنۍ دوره له سیاسي او ایډیالوجیکي مبارزې سره پیل کیږي. خو دغه مبارزه د فیوډالي شرایطو له چوکاټ څخه دباندې نه وزي.

په دې دوره کې پښتو ادبیات د افغانستان ، پښتونخوا او هند په سیمو کې له ځینو ملي مذهبي او پښتني جنبشونو سره په ارتباط کې ایجادیږي او وده کوي.دمنطقې مسلط فرهنګي او ادبي جریانونه پرپښتو ادبیاتو خپل اغېز ښندي او دهمدغو جریاناتو په پیروي په پښتو ادب کې ځانګړې سبکونه پیدا کیږي او ځان ته خپل خاص پیروان مومي.

میاروښان دیوې مذهبي فرقې دلارښود په توګه په توره او قلم مبارزه کوي.

روښان او خوشحال خټک دواړو دپښتنو د خپلواکۍ اوملي حاکمیت دپاره توده او سره جګړه پرمخ بېولې ده.

روښانیانو دعرفان له لارې دخلکو دسیاسي شعور دلوړولو، په هغو کې د خودۍ او پرځان متکي کېدلو، د احساس د وېښولو دپاره آهنګ وال ادبي آثار ایجاد کړل او په دې توګه یې دکتبي ادبیاتو پانګه رامنځ ته شوه.

خوشحال خټک پښتو ادبیات د مضمون، شکل او قالب له پلوه غني کړل. ده دفارسي ژبې ټول قالبونه ؛لکه: (مثنوي، غزل، قصیدې، رباعي، مخمس او نور... ) لفظي او معنوي صنایع په پښتو ادب کې راوستل. دمضمون له پلوه دده په اثارو کې ډېر زیات نوښتونه لیدل کیږي. چې دهغه وخت په شرایطو کې ساری نه لري.

دمنځنۍ دورې ادبیات دمضمون او شکل په لحاظ دپخوانۍ دورې له ادبیاتو سره جوخت توپیر لیدل کیږي.

ددې دورې یوه عمده ځانګړنه داده، چې زمونږ ددې دورې بشپړ او مکمل ادبي او فرهنګي آثار په واک کې لرو.

په دې دوره کې دپښتو ادبیاتو علایق له ګاونډیو ژبو سره هم پراختیامومي. له عربي، فارسي او

هندي ژبو څخه پښتو ته او له پښتو څخه ځينو دغو ژبو ته د آثارو د راکړې ورکړې مسله هم خپلو لوړو پړاوونو ته خيژي.

د افکارو ژورتيا ،دتخيل رنګيني او د قالبونو تنوع د منځنۍ ادبي دورې غوره ځانګړنې ګڼل کيږي.

دا څرګنده خبره ده ،چې د روښانيانو عرفان،دخوشحال دملي تشخيص احساس،درحمان بابا ادبي بلاغت دحميد او کاظم شيدا نازکخيالي د پخوانۍ ادبي دورې په اشعارو کې نه ليدل کيږي. په منځنۍ ادبي دوره کې درې مهم پړاوونه د فکري،سياسي او هنري ځانګړنو له مخې د تشخيص وړ دي،چې غوره استازي يې په فکري لحاظ د روښان پلويان په سياسي لحاظ خوشحال خان خټک او په هنري لحاظ رحمان بابا ، حميد ،شيدا ، حنان بارکزی او نور دي.

## بايزيد روښان

په هغو نثرونو کې،چې د سليمان ماکو نثر وروسته زموږ لاس ته رسېدلی او همدا اوس يې بېلګه موجوده ده،دخيرالبيان نثر دی.

دخيرالبيان د کتاب مؤلف ميا روښان يو له هغو مشهورو او مصروفو ليکوالو او متصرفينو څخه دی ،چې د پښتو ادب په تاريخ کې ډېر شهرت لري. بايزيد روښان سربېره پردې چې يو عالم سړی ؤ ،يو توريالی عسکر هم ؤ او ډېره موده يې دمغلو په مقابل کې جګړې کړي دي او دپښتونولۍ نوم يې ساتلی دی. د پلار نوم يې شيخ عبدالله ؤ ،چې پس له اوه پښته څخه شيخ سراج الدين انصاري ته رسيږي ،چې د مياروښان پلار په کانيي ګرام وزيرستان کې ؤ ،مياروښان علاوه پردې چې د بايزيد په نوم يادېده په پېر روشن يا روښان هم ياد شوی دی،مخاليفينو يې په ((پير تاريک )) سره هم ياد کړی دی ، دبايزيد انصاري يا بايزيد مسکين په نوم هم ذکر شوی دی.

بايزيد روښان په سنه(932ه ) کال زېږېدلی او په (994ه ) کال کې وفات شوی دی،دښاغلي خادم دليکنو له مخې پير روښان د ملاپاينده نومې سړي څخه چې دده د پلار له شاګردانو څخه ؤ درس ويلی دی او طريقت يې له خواجه اسماعيل څخه چې د رياضت خاوند ؤ او ډېر مُريدان او معتقدان يې لرل،اخيستی دی، بيا وروسته په خپله دطريقې په مخ ببولو کې لارښود او رهبر شو او د خاص مسلک او طريقت خاوند شو.

### دخيرالبيان د نثر نمونه:

ادميان زما په هستۍ کې دي زما هستي ده په ادميانو لکه کبونه په اوبو او اوبه په کبونو کې لکه کبونه په اوبو ژوندي دي په ماژوندي دي ادميان ، په قرآن کې ويلي دي سبحان کب چې په اوبو کې ګرزي مخ يې واوبو ته شي هسې هر لور وته چې جاروزي مخ يې وماته شي د ادميانو زه يم وښته په پوست کې د ادميانو په وينو په غوښه د ادميانو په رګ په پله د ادميانو په هډو په ماغزه د ادميانو په هرڅه کې يم،چې څه شته د سړي په ځان تحقيق ده زما هستي له هره څيزه بهر لکه ده له ادميانو زه نږدې يم ادميانو ته له ځانه.

د خيرالبيان اصلي نسخه په لاس کې نه شته او دغه راز څونمونې مارګين ستړن ترينه په خپله يوه مقاله کې رانقل کړي دي ،چې خپله نظريه يې پرې داسې څرګنده کړې ده:

دخیرالبیان په نثرکې د عربي ژبې رنګ او تأثیر ښکاره دی، جمله بندي یې عیناً په عربي سبک تطبیقیږي.
دمقفی نثر لومړی نمونه په پښتو کې د خیرالبیان څخه لاس ته راځي، تر دې دمخه موږ د دغسې نثر نمونه په پښتو کې نه وینو.
په پښتو کې دیني او اخلاقي مسایل او د آیاتونو او حدیثونو ترجمې هم غالباً له خیرالبیان څخه شروع کیږي.
د خیرالبیان نثر د لسم هجري قرن نثر یوه نمونه ده او په دغه وخت کې فارسي نثر هم د عربي له تأثیر لاندې ؤ.

## خوشحال ختک

خوشحال خان د شهبازخان زوی د (1022ه.ق) کال د ربیع الثاني په میاشت د ختکو د اکوړې په سرای کې زیږېدلی دی.
خوشحال خان په خپله یوه قصیده کې خپل ځان داسې راپیژندلی دی:

زه خوشحال د شهباز خان — چې تورزن یم کان په کان
شـهبازخان د یحی خان و — چې بل نه و هـسې ځوان
یـحـی خـان د اکوړي و — چې په توره شـو سلطان
دهجرت زردوه ویشت سن و — چـې زه راغـلم په جهان
هـغه کال پوره پـنـځوس و — چې شهید شو شهباز خان
دهـغـه دور بادشـاه و — قـدر دان شـاه جهان
د پلار ځای یې وماته راکړ — پـه ولس شوم حکمران

دخوشحال خان د دې قصیدې د پورته بیتونو څخه د خوشحال د ژوند زمانه او دده د کورنۍ شجره ډېره ښه معلومیږي.
دکوچنیوالي څخه د خوشحال ژوند له ځینو حوادثو سره ملګری دی، دمثال په ډول په (1029 ه. ق) کال د خوشحال د شپږو کالو ؤ، چې په لنډي سیند کې لاهو شو او نجات یې وموند. په (1030 هه.ق) کال دی د اتو کالو ؤ، چې له ځیرې نه کانې پرې راولوېد دا ځل له مرګ نه بچ شو.
خوشحال خان ختک نه یوازې د خپل وخت او زمان یو تولنیز، سیاسي شخصیت او بریالی سالار ؤ، بلکې دی د پښتو ژبې یو داسې شاعر او لیکوال ؤ، که ووایو د پښتو ادب تاریخ دده له نامه او اثارو پرته نیمګړی دی، نو دا به کومه د مبالغې خبره نه وي.
خوشحال ختک لکه چې یې ویلي دي، پښتو ژبې او ادب ته په نظم او نثر کې هغه څه ورکړل، چې تر ده دمخه او وروسته یې ښایي ساری موږ په ندرت سره بیاموم.

په تازه تازه مضمون د پښتو شعر
په مانا مې د شیراز او خجند کړ

په بل ځای کې بیا وایي:

که د نظم که د نثر که د خط دی — په پښتو ژبه مې حق دی بې حسابه

خوشحال دمغلي واكمنو له خوا بندي شوى هم دى.

پس له بنده دى دا عزم — د خوشحال د خاطر جزم
يانيولى مخ مكې تــه — يا مــغـــلــو ســـره رزم

تربند دمخه د خوشحال بابا آثار يوډول تمايلات لري او تربند وروسته يې شعر او هنر بل رنګ اخلي.

محققانو د خوشحال د آثارو شمېره ډېره زياته ښوولې ده ، خو هغه آثار، چې معلوم دي په لاندې ډول دي:

دخوشحال كليات، چې دبيتونو شمېر يې تر څلوېښت زرو ډېر ښودل شوى دى.

فراقنامه، دستارنامه، بازنامه، فالنامه، فضل نامه، طب نامه، بياض، ځنځيرى ، سواتنامه، پارسي ديوان، اخلاقنامه د خوشحال آثار نه يوازې د كميت په لحاظ دپاملرنې او منلو وړدي، بلكې په كيفي لحاظ هم د خوشحال د آثارو كيفيت ډېر لوړ دى. خوشحال تر (1100 ه.ق) پورې ژوندى ؤ، دده په كليات كې قصيدې، غزلې، رباعي، قطعې، مخمس، مسدس، معشر، تركيب بند ، ترجيح بند ، مثنوي، ذوالقافيتين او نور پيدا كولاى شو .

## دخوشحال د ښكلو غزلونو څخه ديوې غزلې څو بېته د بېلګې په توګه راوړو :

توره چې تېرېږي خوګوزار لره كه نه
زلفې چې ول ول شي خوخپل يار لره كه نه
ولې راته وايې چې په ښكلو نظر مه كړه
سترګې چې پيدا دي خو ديدار لره كه نه
شېخ دې لمونځ روژه كا زه به ډكې پيالې اخلم
هرسړى پيدا دى خپل خپل كار لره كه نه
مى شته چنګ و نى شته د خپل يار سره خوشحاله
خپل بياض په لاس كې څه ګلزار لره كه نه

## رحمان بابا

رحمان بابا په بهادر كلي كې، چې له پېښور څخه درې ميله لرې جنوبي اړخ ته پروت دى. له عبدالستار مومند كره وزېږېده .

پټه خزانه د رحمان بابا د زېږېدو كال (1042 ه.ق) ښيي، لكه څنګه چې مشهوره ده رحمان بابا پيدا شوى خو په بهادر كلي كې ؤ، وروسته د ځينو وجوهاتو له كبله يې خپل كلى پرېښود او هزار خوانې ته راغى.

رحمان بابا له ملا محمد يوسف يوسفزي څخه زده كړه كړې او له هغه څخه يې فقه او تصوف زده كړل ، بيا كوهاټ ته ولاړ هلته يې سبقونه ولوستل او ښه عالم شو . رحمان بابا يو عالم او عابد سړى ؤ .

رحمان بابا د خپل وخت رواجي علوم لوستي وو ، په پارسي او عربي ادب کې يې مطالعه درلوده، رحمان بابا دتصوف له رموزو هم خبر ؤ.

د رحمان بلبل تصوف سرې له خدای او دخدای له مخلوق سره د ناپايې مينې په اظهار کې خلاصه کولای شي. د استاد کامل په وينا : ((له خدای دهغه له مخلوق سره محبت دتصوف داسې اصول دي چې له مذهب سره د بشپړ مطابقت، پاکۍ او عظمت له پلوه ډېر منل شوي دي )). د رحمان بابا د شاعرۍ پيغام همدا محبت دی.

استاد روهي په خپله يوه ليکنه کې دا نظريه داسې تفسير کړې ده چې: ((رحمان بابا د يوه فقر ځپلي اولس زړه ته دخپل پيغام په وسيله لار پيدا کوي او ددغه پيغام اصلي جوهر مينه او محبت دی. عشق او محبت نه يوازې د انسان د نجات وسيله ده، بلکې د جهان دتکوين لومړنی محرک هم دی.

لکه رحمان بابا چې ويلي دي:

داجهان دی خدای له عشقه پيدا کړی　　　دجملو و مخلوقاتو پلار دی دا

دپښتو دغه عظيم انسان دوست شاعر په (1128 هـ.ق ) کال له دنيا څخه سترګې پټې کړې او دپېښور د هزارخانې په هديره کې خاورته وسپارل شو .

له ده څخه په پښتو ژبه دشعر يو ښکلی دېوان راپاتې دی، چې په دوو دفترونو کې تنظيم شوی دی. دا دېوان په پښتو کې مشهور او د احترام وړ دی او خلک فالونه پر باسي او خپل مرادونه ځنې غواړي. په دې دېوان کې ښکلې غزلې، قصيده ډوله اوږدې غزلې مخمس او مسبع پيدا کيږي.

دده روان ساده او عام فهمه شعر د هر چا او هرې سويې د خاوند پر مزاج برابر دی ، دده شعر که آسان دی خو ژور انساني مفاهيم په کې رانغښتي دي.

درحمان بابا دشعر يوه بېلګه:

که په ګنج دشاهي فخرشهريار کا　　　عاشقان يې ددلبرو په رخسار کا
خرقه پوش په خرقه کې دی موندلی　　　هغه حظ چې په دنيايې دنيار دار کا
پتنګانو لره خدای په اورکې ورکړ　　　هغه عيش چې يې بلبلې په ګلزار کا
نيک ساعت په بدبدل د هيچا مه شه　　　په وصال کې غم دهجرور دوڅار کا
دبېړۍ په ډوبېده چې خدای راضي شي　　　يګانګي دزړونو کله هلته کار کا
هغه مخ چې مادر زادښايسته نه دی　　　مشقت دمشاطې واړه مردار کا
باز دنار له خوبه پاځي پسې ګرځي　　　چې فلک دعاشقانو بخت بېدار کا
نيمه شپه يې يار ترسره پورې کښېني　　　لکه شمع چې څوک بله په مزار کا
دمستۍ د هوښيارۍ يې يون څرګند دی　　　په هرچا کې چې څه وي هسې رفتار کا
رحمان هسې بې وقوف سوداګر نه دی
چې ددين متاع بدله په دينار کا

## عبدالحمید مومند

عبدالحمید مومند هم له بده مرغه د پښتو د همهغویو څو وتلیو شاعرانو په لړ کې دی، چې د زده کړې او مړینې جوتې نېټې یې لاهم د څیړنې په تورو اوبو کې ډوبې دي خو بیا هم د حمید بابا د ټاټوبي او زېږنځي په باب هم پښتانه پوهان او د پښتنو څېړونکي یوه خوله نه وو خو وروستیو پلټنو جوته کړه، چې حمید بابا د پېښور کوهاټ سړک او باړې رود پرښي غاړه پراته کلي ماشو ګګړ ماشو کې زېږېدلی دی.

تر (1338) لمریز کال او (1959 زېږدیز) کال پورې کورني څېړونکي او بهرني ختیځپوهان پښتو څېړونکي او لیکوال د راوړتي د روایت له مخې په دې عقیده ؤ، چې ګڼې حمید مومند تر (1145 هه.ق) پورې ژوندی و او یا د بلومهارت Blumharat په وینا پر همدغه کال مړ دی.

خو د حمید بابا د شرعة الاسلام په پیدا کېدو سره دغه عقیده واوښته او تر (1148 ه.ق) پورې د حمید ژوند یقیني ثابت شو.

د حمید بابا مزار د ماشو (ماشوګګړ) په لویه هدیره کې دی، د حمید د یوان چې د اټکل له مخې دده په ژوند ټول شوی دی په ادبي حلقو کې په دُر مرجان مشهور دی. د عبدالحمید مومند وروستی او تر ټولو چاپ شویو دیوانونو بشپړ دیوان همدا سرمحقق هېوادمل په زیار دیوان دی، چې (290) غزلې او قصیده ډوله غزلې، قصیدې، یو مخمس، یو ترکیب بند او دوې څلوریزې لري، چې د ټولو بیتونو شمېر یې (2932) ته رسي د حمید مومند نور مشهور آثار دادي: نیرنګ عشق، د عزیز او شاهد د مینې سوځنده داستان دی، چې پښتو ژباړه یې د حمید له برکته په ادبي حلقو کې هم د ډېر لوړ نامه خاونده شوې ده.

شاه او ګدا د حمید بابا دا منظومه داستاني ژباړه ده. د شاه ګدا د بیتونو شمېره (1788) بیته ده.

حمید بابا دغه کتاب په داسې ډول ترجمه کړی دی، چې د ترجمې په فن کې یې ځانله یو ښکاره مقام پیدا کړی دی.

شرعة الاسلام: دا کتاب په پاړسو هم ترجمه شوی دی. چې د تذکرة الابرار و الاشرار په مأخذونو کې راوړل شوی دی.

پښتو منظومه ترجمه یې د حمید مومند په غښتلي قلم لیکل شوی ده، چې په پښتو تبلیغي اثارو کې د ادبي نفاست له مخې هسکه درجه لري.

دا د خوږ ژبي شاعر حمید مومند د نظم نمونه:

نه زماده نه د ستاده دا دنیا — پاتې شوې له هرچاده دا دنیا
دیوه غبرګ کې پرته وبل ته خاندي — څه لولۍ او بې حیاده دا دنیا
په رښایي د چاکار نه پوره کیږي — د آسمان برق و بربښناده داد دنیا
که ظاهر ښکلې زیبالیده شي څه شو — په باطن توره بلاده دا دنیا
مروت د آشنایۍ په کې نه شته — که اشنا ده نا آشناده دا دنیا
په یو ځای یې ټیکاو هېچېرې نه شي — لکه سیوری خوا وشا ده دا دنیا

تـل پـه ځان پوري د خپـلو طالبانو | مسخـرې کاپـه خندا ده دا دنيا
په سودا يې سود من شوي هېڅوک نه دی | جـو فـروش ګـندم نماده دا دنيا
چې حميد په کې خندا کا رېشخندي کا
ځـای د غـــم او د ژړا ده دا دنـــيـــا

## د پښتو ادبياتو اوسنۍ دوره:

د پښتو دادبي تاريخ اوسنۍ دوره ،دشلمې پيړۍ له دوهمې لسيزې څخه پيل کيږي. دا بايد ووايو ،چې په (1839 زېږديز) کال د ډيورنډ د تحميلي کرښې په اثر د ادبي تحول اوسنۍ دوره په لره او بره پښتونخوا کې د سياسي جريانون د جلاوالي په سبب يو شانته انکشاف نه کوي خو پيلامه يې يو شانته ده.

د اوسنۍ ادبي دورې ادبيات دمنځنۍ دورې ادبياتو سره د محتوی، شکل،ژانرونو او قالبونو له پلوه څرګند توپير لري او دادبي تحول نوې دوره بلل کېدای شي.

دمضمون او محتوا له پلوه د اوسنۍ دورې په ادبياتو کې نوي فکري او سياسي تمايلات،نوي هنري مېتودونه لکه (رياليزم او نور) نوي ادبي ژانرونه لکه (ناول،لنډه کيسه،نوی شعر، ادبي ټوټه،طنز او نور) رامنځ ته شوي دي.

په ادبي قالبونو کې هم نوی شعر ،منثور شعر په ايجادولو سره تنوع او نوښتونه منځ ته راځي.
دپښتو دمعاصر ادب دپيلامې په اړوند دپوهانو اندونه يوډول نه دي. خو د پښتو ادبياتو تاريخ معاصره دوره کتاب مؤلف سرمحقق صديق روهي په عقيده د پښتو معاصر ادب په لره پښتونخوا کې د (1910 زېږديز) کال شا او خوا د (افغان) جريدې په خپرېدلو سره پيليږي. په دغه جريده کې دپښتو ادب نوي ژانرونه باب شول او د راحت زاخيلي،فضل محمود مخفي،عبدالاکبر خان اکبر غونډې ليکوالو او شاعرانو دمعاصر ادب زړې وکرل.

په افغانستان کې د سراج الاخبار د دوهم ځل (1911 زېږديز) کال په خپرېدو سره د پښتو معاصر ادب بنسټ کېښودل شو. د سراج الاخبار د جريدې په خپرېدلو سره د پښتوژبې او ادبياتو ته هم دانکشاف زمينه برابريږي. په همدې وخت کې په لره او بره پښتونخوا کې ډېر داسې ځوانان موجود وو ،چې د نويو علمونو او اروپايي ادب مطالعه يې کړې وه ،نوي ادبي ژانرونه او فورمونه يې پيژندلي وو. دخپل خيال د اظهار لپاره يې نوې لارې په نښه کړې وې .او د پښتو د لرغوني ادب پر پاخه بنسټ يې د پښتو د ننني ادب ماڼۍ پيل کړه ،په افغانستان کې د ((سراج الاخبار افغانستان)) جريده د مولوي عبدالرؤف کندهاري له خوا د (1906 زېږديز) کال د جنوري په يوولسمه نېټه له چاپه راووتله خو له همدغې لومړۍ ګڼې له خپرېدلو وروسته جريده بنده شوه او دوهم ځل لپاره د (سراج الاخبارافغانيه) په نامه په (1911 زېږديز) دمحمود طرزي په مديريت او مشرۍ خپره شوه.
محمود طرزي او عبدالرحمن لودين په (سراج الاخبار افغانيه) کې د پښتو نظمونو او مقالو خپرولو

ته په اګاهانه توګه پاملرنه اړولې وه. د پښتو لومړی شعر چې په دې جریده کې خپور شو د مولوي صالح محمد کندهاري شعر دی:

داخــه عـجب دوران دی
چې راغلی په افغان دی
رنـګــارنــګــه تــرقـــي ده
څه عجب محبوب عنوان دی
داله کومه سو په موړ کې
چې ظـاهــراو نمایان دی
داخــوعــصــر د ســــراج دی
چې افغان ټول پرې روښان دی
ته ســـراج الاخـبـار تـه ګـوره
چې د ملک په تن کې ځان دی
اوس بـیا نـور علي نور سو
په پښتو چې دی ګویان دی

په دغه شعر کې د نوي دوران د پیلېدو زېری ورکړل شوی دی.

## د اوسنۍ او معاصرې دورې د ځینو شاعرانو شعرونه او د کلام نمونې:

مولوي صالح محمد کندهاري: (1269 – 1339 هه.ش)

صالح محمد هوتک په کندهار کې زېږېدلی او د پنځلس کلنۍ په عمر کابل ته راغی. لومړنۍ زده کړه یې د کابل د حبیبې په مدرسه کې سرته ورسوله او بیا په هماغه مدرسه کې د ښوونکي په توګه مقرر شو.

مولوي صالح محمد هوتک د پښتو ژبې درس ورکاوه او د پښتو درسي کتابونه یې لیکلي دي. دده آثار دادي:

1. خود آموز پښتو
2. لومړی کتاب
3. پښتو ژبه لومړی ټوک، دوهم ټوک
4. د پښتو ژبې لپاره تدریسي کتاب
5. پښتو صرف او نحو، له اردو څخه ژباړل شوی
6. د عزیزي تفسیر ترجمه په پښتو ژبه
7. اطاعت اولوالامر په پښتو ژبه
8. پښتو مقنوي

دمولوي صالح محمد ډېرې لیکنې تعلیمي او تدریسي بڼه لري،ده د پښتو د معاصر ادب د سرلاري په توګه نه هېرېدونکې خدمتونه کړي دي. دده یو بل شعر چې دلومړۍ نړیوالې جګړې په وخت کې یې دعثماني ترکیې په ملاتړ ویلی او په سراج الاخبار کې چاپ شوی دی. دانګرېزانو د سخت غبرګون سره مخ شو . هغه شعر دادی:

ته کره د زمکې ګوره
نظر وکړه زما وروره
دنیاده پـــرشور راغلې
تــوربـېـدلې، قهرېدلې
لري ډول چــې پرې دنیا دی
پـــریـورپ که پر اېشیا دی
ټول په جنګ سره اخته دي
پـــه سـرو وینو اغشته دي
جرمـن دی خدای ګمارلی
روس، انګرېز ته شکارلی
انګرېزان په ویر اخته دي
ډېر مغموم خورا خفه دی
هــمـــت ګــوره دتــرکانو
درومـیـــانو ،عـثـمـانیانو
اې زمــــا بــرادرانــو
اې جمله مســلمانانو
ښه فرصت دی خدای راکړې
ښــه مـوقـع دی پـیـدا کړې
چې کفار سره اخــتـه دي
په سرو وینو اغشته د

ي

دغه مثنوي ټوله (70 ) بیته ده. داسې ښکاري چې انګرېزانو به امیر حبیب الله خان ته سپارښتنه کړې وي، چې د مولوي صالح محمد کندهاري د آثارو د خپرېدو مخه ونیسي. تریوه کال پورې چابیا په سراج الاخبارکې دده اثر ونه لید. ددې لپاره چې د خپلو اثارو د خپرېدو لپاره یې لار خلاصه کړې وي. په (1295 هـ.ش) کې یې د (اطاعت اولوالامر) تر سرلیک لاندې یو شعر له چاپه راووت.
د مولوي صالح محمد (دبلبل ژړا ) یا (په قفس کې بلبل) په نامه شعر ډېر شهرت لري، دا دعبدالهادي

داوي د شعر ژباړه ده.

غلام محی الدین افغان (1279 – 1339 هه.ق )

غلام محی الدین افغان د عبدالرشید زوی، په کندهار کې زېږېدلی دی، د تبعید په موده کې یې په هند کې عصري پوهنې زده کړې.

ویل کیږي چې دی په اردو ، سنسکربت، عربي ، انګریزي او فارسي ژبو پوهېده. دی، چې کله کابل ته راستون شو د هېواد ، د ځوانانو د روزنې په منظور یې معارف ته مخه کړه او د دارالمعلمین مدیر وټاکل شو .

د خپلواکۍ د بشپړتیا ، د عصري پوهنو د تعمیم ، پراختیا او د ملي احساس د وېښتیا په لار کې یې هلې ځلې وکړې. افغان د پښتو ژبې د سوچه کولو سره هم مینه درلوده. غلام محی الدین افغان په (1300 ه.ش ) کال خپلې نغمې بس کړې او همېشني باغ ته یې سفر وکړ.

(د مرېنې نېټه چهارشنبه، د زمري 11، 1300 هه مطابق 28 ذیقعده 1339 ) .

دافغان د شعر یوه بېلګه:

زړه زمـا ډک دی لـه مـیـنـې د وطـن
خپل وطن ما ته عزیز دی تر خپل تن

هر یو ګل مې د وطن پر ما ډېـر ګران دی
تــر کشمیره، تر پـاریس و تر لـنـدن

شیرین ځان مې په شیرین وطن فدا دی
زه خـود ارنګه فـرهـاد یـمه کوهکن

ګــلـســتــان مې د وطـن لا درکـنـار دی
خـارســتـان دی د وطـن را ته ګلشن

د وطـن پـه حـمـایت کې ځان مباح دی
پــه دا مـیـنـه کې لازم دی سر باختن

چې د چـا پـه سـر سـودا د وطـن نه وي
ســر دده دی مــســتــحــق د بـریدن

چا په زړه کې چې جنون د وطـن نه وي
دهغه زړه خدای همېش لري غمجن

که څه ډېر دي په جهان کې عـزتـونـه
ډېر عزت دی په خدمت کې د وطن

ګل پاچا الفت (1288 – 1356 هه.ش )

ګل پاچا الفت د میرسید پاچا زوی د سید فقیر پاچا لمسی په خټه سید پښتون په (1909 ) زېږدیز کال، چې د (1288 هه.ش ) سره سمون لري د لغمان ولایت د عزیز خان په کڅ کې زېږېدلی دی .

ګل پاچا الفت د پښتو د معاصرو ادبیاتو هغه لوی ادیب، شاعر او لیکوال دی، چې په ادبپوهنې، ژبپوهنې او لغتپوهنې کې دده ادبي او هنري خدمتونه او دده نه سترې کېدونکې هڅې نه یوازې د هېرېدو نه دي، بلکې زموږ د اوسني او راتلونکي نسل لپاره د یو لوی ادبي او هنري مکتب حیثیت لري. ځکه چې دی، په نظم او نثر کې د ځانګړي سبک خاوند لیکوال دی.

الفت د زړه رنځور ؤ او د همدغې ناروغۍ له امله په (1977 ) زېږدیز کال، چې د (1356 هه.ش ) کال سره برابر دی د قوس میاشتې په (28 ) مه د (63 ) کالو په عمر له دې نړۍ نه د تل لپاره سترګې پټې

کړې او په ډېر درنښت د لغمان د عزيز خان په کڅ کې د کابل جلال اباد ، د لويې لارې په غاړه په خپله پلرنۍ هديره کې خاورو ته وسپارل شو .
دالفت چاپ شوي کتابونه او رسالې:
1- د پسرلي نغمه 2- ښه لمسون 3- عالي افکار 4- د آزادۍ پيغام
5- غوره اشعار 6- د زړه وينا 7 – د الفت خبرې 8 – بله ډيوه
9 – نوی سبک او نوی ادب 10- غوره نثرونه 11- لغوي څېړنه
12-ليکوالي املاء او انشأ 13- څه ليکل يا ليک پوهه 14- ادبي بحثونه
15- پښتو سندرې 16- ملي قهرمان 17- منطق 18- اسلام او د اسلام نقش د فرد او جامعې په جوړولو کې 19- اجتماعي نظريات
20ـ د ټولنې علم 21 – لوړ خيالونه او ژور فکرونه 22- احمد شاه بابا افغان....
دالفت د شعر بېلګه:

زما ګناه

نه مې د چامال خوړلی نه مې څوک وژلي دي
نه مې چا ته ورک شه يا ګم شو کله ويلي دي
نـــــوره ګـــنـــاه نه لرم په دې ګناه مې مه نيسه
زړه کې مې چې پټ ظالم ته بد غوندې کتلي دي
وخت د اعتراف دی ګناه خپله درته وايمه
نه يمه منکر په مظلومانـــو مې ژړلي دي
دا ګناه د ســـــترګـو کـــه د زړه ده نه پوهېږمه
بد مې چې ليدلي خدايږو بد مې هم ګڼلي دی
زه يې په ليدلو او ويلو ګناه ګـــار شـــومـــه
نوريې په کولو او عمل باندې ښاغلي دي
نـــه يـــمـــه خـــايـــن پـــه خـيـــانت د نورو پوه يمه
پوهه که ګناه وي خلق ټول اوس پـــوهېدلي دي
دا چې ډېر کاږه درته ولاړ دي ټـــيـــټ سرونه هم
ستا مخ کې چې سم نه شوه سم کله چليدلي دي
هيڅ اميد ترې مه کړه که څوک ځان د تا غلام ګڼي
مـــا غـــلامـــانـــــه ذهـــنـــيـــوتـــونه پيژندلي دي
لوړ مقام ته رسي چې بوټونه پاکوي د بل
ډېر په دغه شغل رياست ته رسېدلي دي

### دګل پاچا الفت دنثریوه بېلګه:
### ملي يووالی
هغه خلک چې په يوه وطن کې اوسيږي ګټه او زيان يې يو دی،ديوه واکمن امرته يې غاړه اېښې وي له يوه بېرغ لاندې راټوليږي اومشترک تاريخ لري يو ملت بلل کيږي.
افغانستان يو وطن دی، ددې وطن ټول اوسېدونکي يوملت دی،ددې ملت نوم افغان دی،لکه چې په افغانستان کې ساړه او تاوده ،وچ اولامده،هسک اوټيټ ځايونه شته،چې په ځينو کې يو راز غلې او يوې کيږي په ځينو کې بل راز. په ملت کې هم راز راز خلک شته،وطن هغه تنګ او کوچنی کور نه دی چې ديوه پلار او ديوې مور اولادونه به په کې استوګنه لري اونه هغه کلی دی، چې ټول اوسېدونکي به يې يوخېل يا قوم وي په دې اوسنۍ زمانه کې اوس ځينې داسې کورونه هم شته،چې يو مسلمان پښتون له يوې روسي يا امريکايي مېرمنې سره په کې اوسيږي او دواړه ديوه اولاد مور او پلار وي .
هرکله چې په يوه کاله کې دا حال دی نوپه يوه لوی وطن کې به ولې هندو اومسلمان،شعيه او سني،پښتون او تاجک ديوه ملت په حيث نه اوسيږي.
زه ډېر داسې دوه ورونه پيژنم چې يو پښتو وايي او بل پارسي.
(دالفت نثري کليات 107 مخ )

### عبدالحی حبيبي (1289 – 1363 ه.ش)
عبدالحی حبيبي د عبدالحق اخوندزاده زوی ،په قوم کاکړ اوپه (1289 ه ) کال د کندهار په ښار کې زېږېدلی دی.
څرنګه چې دی دکندهار دسترعالم مولوي حبيب الله (مشهورپه حبو اخونزاده) کورنۍ ته منسوب دی نو ځکه يې پرځان د حبيبي تخلص اېښی دی.
پوهاند عبدالحی حبيبي د پښتو ژبې،ادب او د پښتنو دتاريخ ترټولو ستر محقق دی او د همدې امله يې د (لوی استاد ) لقب ګټلی دی.
لوی استاد په خپلو څېړنو کې د پښتو ادبياتو ډېر تياره ګوټونه روښانه کړي دي، ده په سلګونو آثار (کتابونه،رسالې او مقالې ) ليکلي دي.
په فارسي ژبه دده ډېری ليکنې دپښتو ادبياتو اود افغانستان تاريخ معرفي کولو ته وقف شوي دي.
پوهاند حبيبي د ادب او هنر په هر ادبي او هنري ژانر کې دپوره صلاحيت خاوند ؤ، هغه په هنري نثر کې لومړی سړی ؤ ،چې په (1314 هه.ش) کال يې يو هنري نثر (اثر ) د ((توريالۍ پښتنه ) ) په نوم وليکه او له هغه وروسته يې دپښتو ادبياتو دتاريخ لپاره دومره کار کړی دی،چې تر اوسه هيڅ ليکوال او اديب په دې اندازه قلم نه دی چلولی. استاد نه يوازې پښتو ژبې او ادب ته خدمت کړی دی بلکې دري ژبې ته يې هم ډېر خدمتونه کړي دي.
دعبدالحی حبيبي دځينو اثارو نومونه دادي:
1- سپيڅلې پښتو 2- تاريخچه پشتو 3- دسليمان مالو تذکرة او دپټې خزانې ميندل 4- پښتو

ادبیاتو تاریخ لومړی ټوک او دوهم ټوک
5- پښتانه شعراء لومړی ټوک 6- پښتو لویکانو غزنه 7- پښتو او پښتونواله
8- مشاهیر افغانستان 9- پسرلنۍ سندره 10- دډارمستېر دهار وبهار ژباړه 11- تاریخ مختصر افغانستان

## دعبدالحی حبیبي د نثر نمونه:

### دفداکارۍ صحنه

دننګیالو پښتنو کهول لاپرلاړې وه، چې خدای سپېدې وچاودې، سهارسو پر یوه ناور ټولو اودسونه تازه کړه.ترلمانځه وروسته زمري خان بابا توره له تېکې راوکښه، په پښتني جوش یې وویل ((خدایه ! داتوره ماستاد رضا او د پښتنوالي او ننګ او ناموس دساتنې دپاره راکښلې ده ، زه ځان او خپل ګران زوی او دسترګو توره تورپیکۍ او خپله پښتنه ملګرې زرغونه پرتاسپارم ! )).

دایې وویل د لمر لومړیو وړانګو دده توره بربښوله، مخ پرنوې کلاراغلل. هرخومې چې رانږدې کیږې، ګرز او غبار، د توپو ډزهار، دټوپکو ټکهار، د تیارو غړمبهار ډېرېږې او داسې ښکارې، چې دسپین بولدک پرکلا دمحشر ورځ ده. ننګیالیو پښتنوچې دا حال ولید ځانونه یې چمتو کړه. دسپین ږیرې بابا دپښتونوالي احساسات مشتعل سوه ناره یې کړه:

«دا کلا...دازمکه...داخاوره...داوطن...دازموږ دپلاراونیکه هدیره...مګر خاوند نه لري ؟
خدایه پښتانه ژوندي دي که مړه ؟
بیا پردې خاوره د غلیم قدمونه ایښود کیږې؟
ها – دمیوند زمرو !...څه سواست ؟
ها – داحمدشاه بابا او اکبر غازي اولاده !...چېرې یاست ؟
ها – پښتو او پښتنوالي !...
ها !– د بارک او اڅک زامنو !...
د ننګ او ناموس وخت دی...»

پرسپینه ږیره یې رونې اوښکې بهیږې آخره پلا خپل ګران ګلالی زوی ریدي په بغل کې نیسي، پرتندي یې مچوي، وایي:
(( خدایه !...دا زوی خو خاص ددغې ورځې دپاره لوی کړی ، ،دادی ستا رضا او دوطن دپاره یې قرباني کوم !...))

تردې وروسته تورپېکۍ هم پرسپین باړخو باندې مچوي ورته وایي:
((جنکۍ !دسترګو تورې !دپښتانه مېرمنې تل پرخپل ننګ و ناموس ترسر تېریږې. له خدایه غواړم چې ته هم یوه توریالۍ پښتنه سې او د وطن انتقام له غلیم څخه واخلې.

ریدي خان، چې هم آخر ولید خپله ګرانه او دزړه سر محبوبه یې په بغل کې ونیوه، آخرنۍ وداع یې ورسره وکړه. دا منظره دومره دلچسپه وه تابه ویل یو اهل جنت له حورې سره مینه کوي...
وروسته نو دواړو د زرغونې ادې لاسونه ورمچ کړه او حق پلیت یې ځینې واخیست. تورې له تېکې څخه وبربښېدلې. ټوله په ګډه دفداکارۍ میدان ته راغلل.

( دتورپیکی کیسه په او سني لیکوال کې بشپړه چاپ شوې ده،ودې کتل شي )

داستاد حبیبي دشعر بېلګه:

سپوږمۍ !

داسمان سپینې سپوږمیه !
مخ دې روڼ،تندی دې ورین دی

شا او خوا دې پلوشې ځي
په رڼا دې تور ېڼ سپین دی

دویرجنو خواله ګرې
راسه زړه مې ډېرغمګین دی

راسه زماګراني پېغلې مخې !
چې یودم د زړه خواله کړو

سره کښېنو لاس تر غاړه
خواپه خوا سره پاله کړو

ښکلې پېغلې مه شرمېږه
پټ دې ولې ترغره مخ کی؟

ته یې زماد زړګي ملګرې
تل به نوروپر موږ رخ کی

له هېواده لېرې ګرځم
زماپه زړه پورې ملګرې !

د وطن بل څوک خو نسته
دلته یم یوازې لېرې

نه خوارېږ یاران خپلوان سته
نه ددوی څوږې خبرې

یوه ته یې زما ملګرې
راسره یې له هېواده

هم هورې یې هم دلې یې
خدای دې تل ولره ښاده !

چې زه درومم ته هم درومې
چې زه ناست یم،ناسته ته یې

په ځغاسته راسره ځغلې
چې ببده یم ته ببده یې

وفاداره ښکلې پېغله

ته سپوږمۍ ،که پښتنه يې؟

ســتا وفا د پــښــتنو ده
اسماني پېغلـې نجلۍ !

په ښوی ښکلې پښتنه يې
د غـــمــجــن مــيــن شهۍ

عبدالرؤف بېنوا (1293 – 1363 ه ،ش)

عبدالرؤف بېنوا د مفتي عبدالله زوی په (1293 ه ،ش) کال چې د (1913) زېږدیز کال سره سمون خوري، په کندهار کې زېږېدلی دی، په خټه الېزی پښتون دی.
لومړنۍ زده کړې يې د خپلې کورنۍ د غړو او د کندهاري عالمانو څخه کړې ده، وروسته يې په خصوصي ډول زده کړې او مطالعې ته دوام ورکړ.
بېنوا ډېر اثار ليکلي دي،چې مشهور يې دا دي:
پښتني مېرمني،مېرويس نيکه،ادبي فنون،هوتکي ها ، پرېشانه افکار، ټاګور د کيتاانجلي ژباړه،اوسنی ليکوال (دري ټوکه) ، پښتونستان،پښتو کلي ، پردېس،پښتو د شاهانو په دربار کې، خوشحال خان خټک څه وايي، چند آهنګ ملي ، د غنمو وږی ، د افغانستان تاريخي پېښې، د زړه خواله ،د افغانستان نوميالي (په درې ټوکه کې) او نور.
استاد بېنوا د پښتو د معاصر ادب ښه ليکوال او شاعر تېرشوی دی، په هنري نثر کې خصوصاً ډرامه کې لومړی ليکوال دی.
بېنوا په (1363 ه.ش) کال د سرطان دناروغۍ له پاره نيويارک ته ولاړ، هلته وفات شو او په نيو جرسي کې خاورو ته وسپارل شو.
خوا دبېنوا وصيت ترسرليک لاندې شعر کې بېنوا دا سې غوښتنه کړې، کله چې وطن د سرو لښکرو نه ازاد شي نو زما هډوکي به خپل وطن پاک افغانستان ته رسوئ. ددې وصيت وروستي درې بيته داسې دي:

زما هډونه به دروړئ وخپل وطن ته
مړبلبل به رسوئ وخپل ګلشن ته
ښخوئ به ما په پاک افغانستان کې
د پروټو ،ننګياليو په جهان کې
زما په شنخته به ليکی ځلميو ! دا
((دلته ښخ دی پردېس شوی بېنوا ))
دبېنوا د شعر بېلګه:
غلی شانته انقلاب

نسیم ووې د ګل غوږ کې، بدل شو د یاراني رنګ
غلی شـــانته انقلاب دی، بدلوي د زمانې رنګ
ورسره نوي رنګونه رنګارنګ تحولونه
کړي سمسور به زاغ رغونه
نوی ساز نوی آواز دی، هم شو نوی د نغمې رنګ
غلی شـــانته انقلاب دی، بدلوي د زمانې رنګ
نوی دام نوی صیاد دی نوی چل نوی بېداد دی
نوی آه نوی فریاد دی
هوښیاري صـید لره بویه، بدل شوی د دانې رنګ
غلی شانـــتـه انقلاب دی، بدلوي د زمانې رنګ
لري نوي محبسونه نه یو سرای نه یوه خونه
حبسوي لوی هېوادونه
چې بندي پرې نه پوهېږي، د اسې شـو د زولانې رنګ
غلی شانته انــقــلاب دی ، بـــدلـــوي د زمانې رنګ
طلايي جام کې د دور شراب زهر دي په دور
نو شېدل یې غواړي غور
ای سرمست زلمیه پام کړه، بل راز شو د میخانې رنګ
غـــلی شانته انـــقـــلاب دی ، بدلـوي د زمانې رنګ
سره واوښتل قومونه ویښ خبر شول له ژوندونه
د ویدو شول وران کورونه
ګوره کله به شـي نوی د پښتون د کاشانې رنګ
غلی شانته انـقلاب دی، بدلوي د زمانې رنګ

## پوهاند عبدالشکور رشاد (1300 – 1383 ه.ش)

پوهاند اکاډیمېسن عبدالشکور رشاد ، د عبدالغفور خان زوی د حاجي محمد آیاز خان لمسی په ختېه بابړ، په (1300 ه.ش) کال کې د کندهار ښار د بابړو په کوڅه کې زېږېدلی دی، پنځه کلن ؤ چې په ښوونځي کې داخل شو ،ښوونځي ته تر تلو دمخ یې قرآن عظیم الشان ختم کړی، بوستان، ګلستان، پنج ګنج او نور مروج فارسي کتابونه یې لوستي او دفقې شریفې په زده کړه یې پیل کړی ؤ، د کندهار د ګنج په ښوونځي کې تر یوولس کلنۍ پورې زده کړه وکړه. په ښوونځي کې د هغه لیاقت اوازه دومره خپره شوه چې کله امان الله خان کندهار ته تللی ؤ نو د ګنج په ښوونځي د کوچني عبدالشکور ټولګي ته ورغی او ورته یې وویل: ((بچیه زه ستا په خاطر دې ټولګي ته راننوتم)).

استاد اوه ویشت کلن ؤ چې د لوړو زده کړو د حاصلولو لپاره په خپل شخصي لګښت هند ته لاړ

او هلته يې پوره اوه کاله د ژبو ،ادبي فنونو او تاريخي مسايلو په باره کې مطالعات وکړل.
علامه رشاد له (1337 لمريز) کال څخه د کابل پوهنتون په ادب پوهنځی کې د استادۍ دنده په غاړه لرله، استاد په فارسي او اردو ژبو دومره لاس برۍ ؤ لکه په خپله مورنۍ ژبه باندې. په عربي،روسي،انګليسي او هندي ژبو مسلط ؤ.
دهېواد له دغه لوی عالم څخه (32) چاپ شوي او (65) ناچاپ کتابونه او دغه راز په سل ګونو علمي او ادبي مقالې راپاتې دي.
دغه لوی عالم نامتو او دقيق ليکوال او څېړونکی،چې په سيمه او نړۍ کې يې خپله ځانګړې پېژندګلوي درلوده له يو عمر وياړلي خدمت نه وروسته د (83) کالو په عمر د (1383 لمريز) کال د لېندۍ په يوولسمه نېټه له دغې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او خپل ټول ارادتمندان يې په خپلې مړينې د غم په ټغر کښېنول.
د پوهاند عبدالشکور رشاد د شعر يوه بېلګه:

حريت

دمــجـنـون ژونـدون به څه وي چې ليلا مري
څه په کار دی تش کالبوت چې زړه دچامري

زړه ډيــوه ده دا دخــټو پــه کــالب کې
خدای ومه کړه چې دا ډيوه دچــامري

چــې مــرغــه لاړشــي قـفـس د ماتېدو دی
که به زړه مري تش ګوګل دې لاپخوا مري

هـيــڅ مــمـکن نـه دی پــايـښـت دهــغه پېږي
زړه چې مري کالبوت مجبور دی خامخا مري

حــريــت دهــرمــلـت دبدن زړه دی
که دانه و ،هم ملت مري هم بقا مري

## پوهاند صديق الله رښتين

پوهاند صديق الله رښتين د مولوي تاج محمد زوی د (1298 ه.ش) کال شا اوخوا دمومندو په سره کمره کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې يې په خپله علمي کورنۍ کې کړې ده او بيا يې خپل تحصيلات د ننګرهار د هډې په نجم المدارس او د کابل په عربي دارالعلوم کې سرته رسولي دي.
پوهاند صديق الله رښتين د خدمت ډېره موده په پښتو ټولنه کې او د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي کې دا استاد په توګه تېره کړې ده.
پوهاند رښتين په ابتدا کې شعرونه هم ويل خو وروسته يې خپل وخت ژبپوهنې او ادبپوهنې ته وقف کړ.
رښتين د خپل وخت نوميالی ليکوال او قوي نثر ليکونکی دی،چې آثار يې په متفرق او مستقل

ډول د هېواد په مطبوعاتو کې خپاره شوي دي.
پوهاند صديق الله رښتين په (1377 ه.ش) کال د ليندۍ په شپږمه نېټه په پېښور کې وفات او ننګرهار په بهسودو کې خاورو ته وسپارل شو.
د پوهاند رښتين نامتو اثار دادي:
د پښتو ادب تاريخ، د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه، د پښتو لوی ګرامر (په پارسي ژبه) پښتو قصې، د هند سفر، پښتو ژبښودنه، د ژوند سندره، نوی ژوند، د مينې هنداره، د پښتو مصدرونو لارښود او نور....

## املاء او انشاء

املا د عربي کلمه ده په لغت کې مهلت ورکولو ته وايي.
په ادبي اصطلاح کې: خپلې خبرې په صحيح ډول ليکل دي که څوک له ځان نه څه نشي ليکلی، مګر د بل ليک له مخې نقل کولای شي دغه نقل ته املاء نشو ويلې.
املايي لارښوونې
د املاء خاوند بايد دا لاندې ټکي په نظر کې ونيسي:
۱ـ څه چې ليکي بايد د صحيح تلفظ له مخې يې وليکي او په غلط تلفظ پسې لاړ نه شي په هره ژبه کې د عوامو تلفظ او صحيح تلفظ يو څه فرق لري.
ځينې الفاظ شته، چې په ويلو کې يو راز او په ليکلو کې بل راز دي.
لکه د پښتو په عامه محاوره کې (الک) ويل کيږي، مګر په ليکلو کې (هلک) ليکل کيږي.
همدارنګه په دري ژبه کې چې (او) ويل کيږي او (آب) ليکل کيږي.
۲ـ د ګرامر مراعات: په ليکلو کې بايد د صرف او نحوي مراعات وشي. ځينې جملې په وينا کې دومره لنډې شوې دي، چې په ليک کې نشته. لکه (څيکې) ويل کيږي او په پښتو ليک کې بيا همدا کلام (څه يې کوې؟) ليکل کيږي.
په دري ژبه کې هم (مچم) ويل کيږي او (من چه ميدانم) ليکل کيږي.
۳ـ دوه بيلې کليمې به يو له بله ليکلو کې نه نښلوو. ياني دا راز کلمات (لوی کور)، (ټول سړي) بايد داسې ونه ليکو: (لويکور، ټولسړي).
۴ـ که له دوو کلمو څخه يوه کلمه جوړه شوې وي، لکه (ټوليمشر)، (ټولواک) بيا يې په ليک کې بيلول ښه نه دي. همدا ډول د (بيلتانه) کلمه (بې لتانه) غوندې ونه ليکو چې مانا يې تغيرپيدا کوي.
۵ـ د کلماتو په ليکلو کې دا مراعات هم ضرور دی، چې يوه کلمه د يوې بلې کلمې په شان ونه ليکو او څومره چې کيدی شي د التباس او اشتباه مخه ونيسو.
مثلاً (پوښتنه) د تپوس په مانا او (پښتنه) د پښتون مؤنثه کلمه بايد په ليکلو کې فرق ولري.
همدارنګه (ګوډ) او (ګډ) بايد يو شان ونه ليکو او نه (پريښی) لکه (پرې ايښی) وليکو. (نوی) د جديد په مانا او (نه وي) د نباشد په مانا په ليکلو کې بايد فرق ولري.
۶ـ په پښتو کې د نفي توري او د نهي توري (نه، مه) له افعالو څخه جدا ليکل کيږي. لکه: (نه ځي، نه

کوي ، نه ویني، مه وایه ، مه کوه ، مه ځه ، مه غواړه ) مګر په (نشي ، نشته ، نګړي ، مشه ، مکړه ) کې یې ډېرئ متصل لیکي.
**۷- پښتو توری:**
په پښتو ژبه کې ځینې خاص توري شته ، چې په فارسي او عربي کې نشته ، ددغو تورو ځای پیژندل او په خپل محل کې یې لیکل په پښتو املاء کې ډیر اهمیت لري. چې هغه دادي:
ښ: دا توری ځینې پښتانه لکه (خ) یا (ښ) ته نژدې تلفظ کوي او ځینې پښتانه یې د (ش) غوندې ادا کوي. نو د غه دوه یا درې مختلف غږونه چې یو ځای او بل ځای د لهجې د اختلاف په وجه د ځینو لغاتو په تلفظ کې شته ، په لیک کې ددغه توري په لیکلو دغه اختلاف له منځه تللی او د لیک یو راز والی یې ساتلی دی.
دا توری په داسې لغاتو کې لیکل کیږي. لکه: ( ښه ، لو ښی ، اوښ ) چې څوک یې یو راز او څوک یې بل راز تلفظ کوي.
کومه کلمه، چې یوازې د (خ) یا یوازې د (ش) اواز راغلی وي هلته دغه توري نه لیکل کیږي ، لکه (ختهه ، خاوره ، شګه ، شولې ... ) په دغه اساس باید (خندل) چې د (خندیدن) په مانا دي په (خ) ، او (شیندل) د پاشیدن په مانا په
( ش ) ولیکو. او (ښندل) چې د قربانولو او سرورکولو په مانا سره په پښتو (ښ) ولیکل شي، چې ددرې واړه کلمو مانا ګانې وساتو.
ږ:- د پښتو دا خاص تو ری هم ځینې پښتانه لکه (ژ) او ځینې یې لکه (ګ) اداکوي ، نو ځکه په هغو کلمو کې لیکل کیږي، چې د لهجو د اختلاف په وجه دغه دوه آوازونه ولري. لکه: (ږلی ، لږ ، کوږ) دغه توري هم په پښتو املاکې دلهجو د اختلاف مخه نیولې ده او دلیک یو والی یې ساتلی دی.
کومې کلمې چې یوازې د(ګ) یا یوازې د (ژ) اواز لري هلته دا توری نه لیکل کیږي او هماغه (ګ) یا (ژ) لیکي. لکه: (مالګه ، ګوره ، ژبه ، ژرنده ، ژوند ... )
ځ:-دا هم پښتو خاص توری دی له (ز) نه لږ غوندې دورند دی ،چې په ځینو پښتو کلمو کې یې لیکل ډیر ضرور دی ، لکه: ځان ،ځنډ ، ځنګل ، او داسې نور... .
په پښتو کې ځینې نشته لکه (ځه ) چې د تللو امر دی او په پښتو (ځ) لیکل کیږي که دا کلمه په (ز) ولیکو نو (زه ) د مفرد متکلم ضمیر ترینه جوړیږي.
همدغه شان (ځوړ) د (ښکته ) په مانا که په (ز) ولیکل شي نو د (زوړ) سره مشبه کیږي.
دا توری د پښتو په پخواني رسم الخط کې ډیر استعمالیده ، اوس یې په ځینو لغاتو کې ځای (ز) نیولی دی. لکه: ( زما ، زغمل ، زوی ، ګرزیدل او داسې نور... دغه تغیر او تحول ته چې ګورو دا اټکل کیدی شي، چې څه زمانه وروسته به دغه توری له منځه ولاړشي او خپل ځای به (ز) ته پریږدي ، ځکه چې ددې دواړو تورو ترمنځ په تلفظ کې دومره فرق نشته ،چې هر څوک پرې پوه شي او له یوه ګُلي قانون لاندې راشي. دلته چې کومه قاعده یو څه تطبیق پیداکوي هغه داده چې: کوم کلمات، چې په دري کې په (ج) ویل کیږي او په پښتو کې هماغه کلمات په (ځ) نو هلته باید همدغه پښتو (ځ) ولیکو .لکه: ځوان ، ځان ، ځنګل او داسې نور.
سربیره پردې په هغو کلمو کې یې هم لیکل ضرور دي، چې که په (ز) ولیکل شي نو له یوه بل پښتو

لغت سره القباس پیدا کوي ، لکه ځړیدل ، زړیدل .
ځ:-دا هم پښتو توری دی چې په فارسي او عربي کې نشته ، تلفظ یې (س) ته نږدی دی او ځینې کسان یې په ځای د (س) توري استعمالوي. که دغه توري په ځای (س) ولیکل شي نو دځینو کلمو مانا بدلیږي ، لکه: (څټ ، ځوک ) چې (سټ ، سوک ) ترې جوړیږي.
ډ ،ړ ،ټ:دا درې توري په پښتو املا کې ډیره زیاته برخه لري چې ځای پیژندل یې ډیر ضرور دي او صحیح تلفظ یې په کار دی ، که یو لیکوال په لیکو کې او ویونکی په وینا کې (ټ) په (ت) او (ړ) یا (ډ ) په (د ) بدل کړي ، دا املاء او دغه تلفظ صحیح نه ګڼل کیږي او په ځینو لغاتو کې د مانا د تغیر مو جب ګرځي.
لکه: (وړ، ټول ، ډار ) چې (ور ، تول ، دار ) ترې جوړیږي.
ڼ:-دا توری له (ن) څخه دروند ادا کیږي ، لکه: ( منهه ، بڼ ، تنې ) ب کلمو کې. پخوا نو لیکوالو او اوس ځینو لیکوالو دا توری داسې (نړ) لیکلی دی چې دوه توري (ن+ړ) یې یو ځای کړي دي او د یو توري نو م یې پرې ایښی دی ، دا توری باید په بسیط ډول (ڼ) ولیکو ځکه چې په مرکب ډول یې لیکل په ځینو کلمو کې مشکلات پیښوي.لکه: (نړۍ ، خونړۍ ، کونړ، نړول ، نړیدل ) او داسې نور.
## په پښتو کې د (ی) ډولونه:
په پښتو املا کې (ی) په پنځه ډوله لیکل کیږي.
۱ـملنه یا معروفه (ی) : هغه ساکنه (ی) چې د مخه توری یې زور ولري او نرم ویل کیږي.لکه (سړی ، لیونی ، منګی ).
۲ـ څرګنده یا نسبتي (ي) : چې د مخه توری یې خالص او ثقیل زبر ولري. لکه:(ویر ، بیاتي ، ښادي ،دوستي ).
۳ـمجهوله یا اوږده (ې) : چې د مخه توری یې خفیف زیر ولري او اوږده ویل کیږي. لکه: (هېر ، تېر، شیدې ، مستې).
۴ـلکۍ داره یا تانیثي (ۍ) : چې د مخه توری یې زورکی لري یو اځی د کلیمې په پای کې راځي ،لکه: (څپلۍ ، نجلۍ ، شینکۍ ).
۵ـفعلي یا همزه لرونکي (ئ) : د مخاطب افعالو په پای کې راځي ،لکه: خورئ ، وړئ) د امر په ډول (وخورئ ، مه ژاړئ ).
د دغو یاګانو په بدلون کله یو لغت په بل لغت بدلیږي او په مانا کې یې تغیر راځي.لکه: (مېنه ، مینه ، غړی ،غړۍ ، شړی ، مه خورئ ، ګورئ )
د یاګانو برخه په پښتو ګرامر کې هم ډیره زیاته ده ،یانې مفرد ،جمع ، مذکر او مؤنث فعل او اسم ،غایب او مخاطب د همدغو یاګانو په وجه معلومیږي.
که د ایاګانې په لیکلو کې فرق ونلري نو (وړۍ) د (پشم )په مانا او (وړئ) د وړلو به مانا به یو راز لیکو ، (راځی) چې د امر صیغه ده د (راځي) سره به په لیک کې یو ډول وي.
## دلیکوالۍ فن یا انشاء
لیک د فکر او احساساتو د انتقال یوه وسیله ده ، چې په هغه کې د یو لړ منل شوو اشارو او علامو

ځخه کار اخستل کیږي، یا لیک هغه علامې او سمبولونه دي، چې داواز د ثبتیدو لپاره وضع شوي وي.
د لیک پیدا ابښت د بشر ژوند ته نظم ور وبا ښه اود تاریخ اغاز ورسره وشو.
دلیک پیدا ابښت دبشري تجربو دلیږدولو وسیله شو اودبشر تجربو ته یې داسې تسلسل ورکړ، چې نسل په نسل پرمختیایې ګامونه واخلي.
دلیک همدې ارزښت د سواد عامیدل او د لومړنیو زده کړو جبري کیدل رامنځ ته کړل او اوس د نړۍ په ډیرو وروسته پاتې هیوادونو او ټولنو کې هم هڅه کیږي، چې ماشومان لیک او لوست زده کړي او دعلم له نعمت نه برخمن شي.
نو په دې بنا لیک لوست یو ضرورت دی خو تر هغه را وروسته لیکوالي بیا فن دی، چې خاصه زده کړه او خاصې لارښوونې غواړي.
اوس چې مو لیک وپیژاند ، نو د انشاء یا لیکوالۍ فن به هم په لنډ ډول درو پیژنو:
انشاء یا لیکنه:
انشاء د شروع «ایجاد» او وضع کولو مانا لري. خو په ادبیاتو کې ددې کلمې متداوله مانا وضع کول او منځ ته راوړل دي. یانې دیو نوي شي پیدا کولو ته انشاء وایي.
په ادبي اصطلاح یو نوی فکر او نوی خیال په الفاظو کې ځرګندول انشاء ده.
«لیکوالي په عامه مانا هغه فن اولیکنی هنر دی ،چې دهغه په وسیله کولی شو خپل افکار یا په بله وینا هغه مفاهیم ، مطالب اومعلومات،چې زموږ په ذهن کې دي په لیکنې ښه په ډیره اسانه او اغیزمنه توګه نوروته ورانتقال کړو.
دلیکوالۍ د فن اومسلک لمن ډیره پراخه او ټولنیز ارزښت او اهمیت یې ډېر دی.له عادي یادښتونو ، شخصي او رسمي یا اداري لیکونو ځخه نیولې بیا دلوړو تخلیقي او تحقیقي لیکنو (انشاء) تر بیلا بیلو ډولونو پورې ددغه فن په پراخه لمن کې رانغښتي اوهر هغه څوک،چې خپل فکر ، پوهه او معلومات په لیکلې ښه په سمه اومناسبه طریقه نوروته ور رسول یا لیږدول غواړي دغه فن ته اړتیا لري.
دلیکوالۍ پوهه او هنر تر ډیره حده دادبي اوعلمي اثارو په مطالعه او پرله پسې مشق او تمرین تر لاسه کیږي. ځکه چې ددغه فن بنسټ د زده کوونکي په فطري استعداد ،ذوق، تخیلي او بدیعي ځواک ولاړ دی او داپه لیکوال پورې اړه لري،چې د خپل بدیعي او تخیلي قوت په ملتیا دلیکنې لپاره څه ډول مناسب الفاظ او د لیکنې کوم فورم او انداز وکاروي.
دلیکوالۍ د فن په هکله څو عمومي لارښوونې او پاملرنې
په ښه او سمه توګه د لیکوالۍ د فن دزده کړې او پر هغې د پوهیدنې لپاره ډیرې آغیزمنې لارې چارې شته، چې ددغه هنر د پوهانو او څیړونکو له خوا په ګوته شوي دي. موږ دلته د هغو پاملرنو او لارښوونو له جملې ځخه مهمو یادونه کوو:
۱ـ کوم لیکونکی، چې په یوه موضوع کې څه لیکي لو مړی باید یو معین مقصد او هدف ولري او بیا خپل فکر او خیال په ښکلو خوږو الفاظو سره په ښه ترتیب او صورت داسې ځرګند کړي، چې د لیکونکي مطلب په ښه ډول ښکاره شي او په لوستونکي ښه آغیزه او تاثیر وکړي.

۲ـ لیکنه باید ساده او عام فهمه وی. لیکوال باید د مفهوم د افادې لپاره داسې کلمات انتخاب کړي، چې د خلکو ذهن ته ډېر نژدې او عام فهمه وي. د لیکنې جملې یې لنډې، عبارتونه یې بې تکلفه او له تصنع نه خلاص وی.

۳ـ بې ضرورته اوږده مقدمه ، لیکنه بې خونده کوي ، نو ښه داده چې اصلي مطلب په څرګندو الفاظوکې نورو ته وړاندې شي. هڅه دې وشي، چې د متن لمن له هر ډول ابهام څخه پاکه وي.

۴ـ د لیکوال لپاره د ژبې پر ګرامري قاعدو پوهیدنه ضروري او اساسي شرط دی.

په لیکنه کې باید دامکان تر بریده د هر ډول ګرامري غلطیو مخه ونیول شي او ټول کلمات د ګرامري اصولو سره سم استعمال شي.

۵ـ په لیکنه کې دې تر ډېره کچې پورې د ژبې معیاري لهجه په پام کې ونیول شي. ترڅو دهغې ژبې نورلوستونکي وګړي یې له لیکنې څخه مطلوبه ګټه واخلي.

۶ـ لیکوال دې بې ضرورته د نورو ژبو لغات نه استعمالوي ، تر ممکنې اندازې پورې دې هڅه وکړي، چې د خپلې ژبې لغات استعمال کړي.

۷ـ په لیکنه کې باید د عطف اوربط توري ډېر او بې ضرورته استعمال نه شي ، ځکه چې د لیکنې لوستنه بې خونه کوي.

۸ـ لیکوال دې په لیکنه کې باید دضعیفو ټکو او کمزورو استدلالونو څخه ډډه وکړي. هڅه دې وشي، چې لیکنه په پوخ استدلال او قوي منطق ولاړه وي.

۹ـ دمضمون او محتوا راښکون په لیکنه کې ډیر اهمیت لري. مانا په کلمو او جملو کې داسې ترتیب شي ،چې له پیل څخه تر پایه پورې لوستونکي په ځان پسې راوکاږي او د لوستونکي تخیلي او فکري قوه د پایه پورې بلې خواته پرې نه ږدي.

۱۰ـ لیکوال باید په خپله لیکنه ټینګه عقیده ولري او په دې ډاډ من وي څه چې لیکي هغه یې د زړه او ضمیر غږ دی ، په لیکنه کې باید صداقت او صمیمیت موجود دي څو په لو ستونکو مطلوبه آغیزه وکړي.

۱۱ـ په لیکنه کې دنظم او ترتیب مراعات ډیر ضروري دی ، ځکه چې په انشاء او لیکنه کې د الفاظو ،کلمو ،جملو او عبارتونو ګډوډې او بې ترتیبي ستر عیب ګڼل کیږي.

موضوع په داسې ډول باید وڅیړل شي، چې مضمون له پیله تر پایه دمانا اومحتوا له مخې بې نظمه اوبې تر تیبه نه وي.

۱۲ـ دنوښت او ابتکار قوه په لیکنه کې ستر اهمیت لري. د لیکوالۍ د هنر یوه ستره ځانګړنه داده، چې لیکوال له کتنو او اوریدنو څخه نو ي ، نوي مضامین پیدا کوي او له عادي پیښونه نوي نتایج اخلي نو ابتکار د انشاء معنوي برخه ده او دانشاء ستر صفت دی.

د لیکوال د تخیلي ځواک خومره والی او څنګه والی دهغه په لیکنه جوته آغیزه لري. تخیلي ځواک دابتکار اونو ښت تو منه ده، خومره، چې دلیکوال او شاعر تخیلي قوه پیاوړې وي په هماغه پیمانه یې دابتکار او نوښت قوت ډېر وي.

۱۳ـ په لیکنه کې د لیکوال ټولنیز شخصیت او اخلاقي شجاعت ډیره آغیزه لري.

همدغه احساس هغه ته دا جرأت ورکوي، چې ټولنیز واقیعتونه ، حقایق او دردونه په صراحت سره

بیان کړي.
۱۴-دمنل شویو عقیدوي ، کلتوري اوټولنیزو معیارونو په چوکاټ کې فکري ازادي د لیکوالۍ لپاره یو ه ضروري اولازمي ځانګړنه ده. څومره، چې لیکوال ازاد فکر کولای شي لیکنه یې په هماغه پیمانه ابتذال نه لري ، تجدد او نو ښت پکې زیات وي.
۱۵-لیکوال باید دلیکنې لپاره داسې موضوع انتخاب کړي، چې پکې پوره معلومات ولري. پر موضوع بشپړ حاکمیت لرل د ښې لیکنې اساسي شرط دی.
۱۶-دلیکنې دعنوان په ټاکنه کې باید ډیرِ غور اودقت څخه کار واخیستل شي ، داسې عنوان وټاکي، چې معنوي جامعیت ولري او لوستونکي ته تر ډیره حده دلیکنې داساسي هدف دپس منظر مفهوم افاده کړي.
۱۷-تر لیکلو ورسته خپله لیکنه څوځله ولولي ، ستاسې هر ځل لوستنه به په لیکنه کې خامخا لفظي او معنوي اصلاح اوسمون راولي.
۱۸-که کیدلای شي خپله لیکنه تر لیکنې وروسته خپل خوا خوږي ته چې تر تاسې یې علمیت ، پوهه او استعداد لوړ اودلیکوالۍ په فن کې یې تجربه ډېره وي دکتنې لپاره ورکړئ ، کیدای شي د لیکنې د سمون او بشپړتیا په برخه کې په زړه پورې مشورې درکړي.
۱۹-په لیکنه کې دمعلوماتو منابع او مآخذ ښودنه اساسي شرط دی. دا چار ستاسې علمي اومعلوماتي کمزوري نه ده ، بلکې دلیکنې ارزښت مو لاپسې زیاتوي.
۲۰-په لیکنه کې دلیک نښو استعمال لازمي او حتمي دی ، هر لیکو ال ته ددغو نښو نښانو زده کړه ، پرې پوهیدنه اودهغو داستعمال د ځای پیژندنه ضروري ده.

## د مقالې لیکنې عمومي چوکات

د یوې بشپړې ،علمي، تحقیقي معیاري مقالې په لیکنې چوکاټ کې دا لاندې درې برخې شاملې دي:
۱-سریزه ۲-اصلي مطلب ۳-لنډیز او نتیجه
۱-سریزه:-سریزه (مقدمه ) دلیکنې لومړۍ ،خو اساسي برخه ده. په سریزه کې لیکوال معمولاً هغه کلمات او عام ټکي راوړي، چې وروسته وربادې په اصلي برخه کې خبرې کیږي.
سریزه د لیکنې دروح،محتوا او مانا د هنداړې حیثیت لري. څومره چې لنډه خو جامع جذابه ،خوندوره اومنظمه وي هغومره پکې دهڅونې قوت ډېر وي.
په مقدمه کې لیکوال په عمومي توګه دا یادونه کوي،چې ولې یې داموضوع انتخاب کړه،څه دلچسپي یې ورسره لرله،دلیکنې هدف او اهمیت یې څه دی؟
۲-اصلي مطلب:
دادلیکنې تر ټولو مهمه برخه ده، چې لیکوال پکښې د ټاکل شوي عنوان تر مفهوم لاندې په اصلي اومرکزي موضوع بحث کوي. په دې برخه کې ټول اړوند مطالب په بیلوبیلو پراګرافونو کې او که لازمه ولیدل شي په بیلوبیلو څنګزنو (بغلي) عنوانونو کې یو په بل پسې تشریح او څیړله کیږي.
په اصلي برخه کې باید ټول مسایل داصلي موضوع پرشاوخوا وڅرخیږي. په دې برخه کې تر ټولو مهم او ستر کار دواقیعتونو څیړنه اوسپړنه ده. لیکوال باید هڅه وکړي، چې موضوع دحقایقو په رڼا

کې لوستونکو ته وړاندې کړي او د موضوع تیاره اړخونه د پاخه استدلال او منطق په رڼا کې روښانه کړي. د برخو ترمنځ باید منطقي ترتیب په پام کې و نیسي.
لیکوال په دې برخه کې معمولاً نظریات او شواهد را ټولوي او بیا پرې د خپل فکري او علمي قوت په وسیله یوه رایه قایموي.
**۳.لنډیز او پایله:**
دا د لیکنې وروستۍ برخه ده. په دغه برخه کې لیکوال لومړی د ځینو هغو مهمو مسایلو چې د اصلي موضوع د روښانتیا او ثبوت لپاره په بیلا بیلو پراګرافونو کې راغلي په ډېر لنډیز سره یادونه کوي او بیا په ځانګړي لیکني مهارت سره له ټول بحث او لیکنې نه یوه لنډه ،خو جامع پایله اخلي او لوستونکي ته یې وړاندې کوي.
د لنډیز او پایلې په برخه کې کله – کله لیکوال د هغو ټکو لنډه غوندې یادونه هم کوي، چې د موضوع په روښانتیا کې پوره آغیزه لري خو له ده څخه د اصلي برخې د لیکنې پروخت پاتې شوې او هیر شوې وي.
یادونه: دیوې علمي، بشپړې او جامع لیکنې (مقالې) په چوکاټ کې د پورته یاد شویو درې واړو برخو شته والی اساسي شرط دی ، چې له هغو پرته دیوې مقالې جوړښت نیمګړی دی.
د کتاب لیکنې عمومي چوکاټ
دیو علمي او تحقیقي کتاب لیکنې په چوکاټ کې دا لاندې برخې شاملې دي:
۱.کتاب پیژندنه ۲.فهرست ۳.سریزه ۴.اصلي موضوع
**۵.**لنډیزاوپایله ۶.تعلیقات ۷.نوملیک ۸.مآخذونه
۱.کتاب پیژندنه:
د کتاب پیژندنې په برخه کې معمولاً د کتاب نوم ، د مؤلف یا ژباړونکي نوم ، د خپرونکي موسسې ،اداري یا شخص نوم ، د خپریدو نیټه ، د چاپ شمیر او ... راځي.
**۲.فهرست:**
دا د کتاب هغه برخه ده، چې معمولاً د کتاب تر دویم سرلیک او کتاب پیژندنې وروسته راځي.په فهرست کې ټول هغه سرلیکونه، چې د کتاب په بیلا بیلو برخو کې راغلي په ماده وار لست کې د شمیرنې او مخ ښودنې سره راځي.
**۳.**سریزه یا سریزې:
**پر کتاب معمولاً دوه ډوله سریزې لیکل کیږي:**
لومړی هغه، چې د نورو له خوا د لیکوال پر اثر لیکل شوې وي. په دغو لیکنو کې د سریزې لیکوال ،د کتاب محتوی، علمي او فني اړخونه په پوره غور ارزیابي او په ګوته کوي.
په کتاب کې د راغلو مطالبو علمي ، هنري او ادبي ښیګڼې ارزښت او اهمیت لوستونکو ته ښیي.
دوهم هغه سریزه ده، چې پخپله د لیکوونکي یا ژباړونکي له خوا لیکل کیږي:
که په یو کتاب کې هر څومره سریزې راغلې وي هر یوه یې په ځانګړو مخونو کې د خپلو ټاکلو سرلیکونو لاندې راځي. د کتاب لیکوال نورو ته د درناوي لومړی د نورو او بیا خپله سریزه راوړي.
هڅه دې وشي، چې د کتاب سریزه ډیره جامع ،منظمه او جذابه وي تر څو په لوستونکي کې

دلوستنې ذوق او هڅونه زیاته کړي او هغه مجبور کړي چې په اثر کې شامل مطالب په پوره غور او مینه تر پایه پورې ولولي.

**۴-اصلي موضوع:**

په علمي او تحقیقي اثارو کې اصلي موضوع دکتاب هغه برخه تشکیلوي چې دکتاب اړوند مطلب د ټاکل شوي عنوان تر مفهوم لاندې په اصلي او مرکزي موضوع بحث کوي.

د کتاب په دی برخه کې ټول مطالب په منطقي توګه یو په بل پسې څېړل کیږي.

لیکوال د موضوع د اهمیت له مخې په پیل کې مطالب په بیلا بیلو څپرکو ویشي او بیا د هر مطلب په اړونده څپرکو کې تر لویو او څنګزنو (بغلي) سرلیکونو لاندې معلومات وړاندې کوي.

لیکوال د لیکنې په دغه برخه کې د بیلا بیلو منابعو څخه مطلوب معلومات ،نظریات او شواهد راټولوي اودخپل علمي او فکري استدلالي قوت په ملتیا هغه تحلیل ، توضیح او تشریح کوي په پای کې یوه جامع نتیجه ترې راوباسي

**۵-لنډیز او پایله:**

دادلیکنې هغه برخه ده ،چې تر اصلي موضوع وروسته راځي. دلنډیزاونتیجې کموالی ،زیاتوالی دمتن داصلي برخې په حجم اود مطالبو په تنوع پورې اړه لري.

ځینې لیکوالان داصلي برخې دهرې موضوع او فصل لنډیز دهماغه فصل په پای کې راوړي او ځینې بیا دټولو فصلونو یو لنډ خو جامع جاج اخلي اودکتاب داصلي برخې تر پای ته رسیدو وروسته یې په یو یا څوځانګړو مخونو کې راوړي.

دلنډیز اونتیجې په برخه کې لیکوال هڅه کوي،چې دکتاب داساسي موضوع په رڼا کې دټولو مهمو ټکو اومسایلو لنډه او ځغلنده یادونه وکړي اوبیا ترې د خپل علم ،پوهې،فکر ،بصیرت او استعداد په قوت په ډیر دقت سره یوه لنډه او جامع نتیجه واخلي او لوستونکي ته یې وړاندې کړي.

**۶-تعلیقات:**

په تعلیقاتو کې معمولاً په متن کې د شاملو مهمو لغاتو ، اصطلاحاتو ، پیښنو ،مسایلو او داسې نوروا جزاؤ مدلله اومستنده شرحه راځي، چې زیاتې تشریح او توضیح ته ضرورت لري.

خود کتاب د مخونو په لمن لیکونو کې نشې ځائیدای. پخوا به داکار د کتابونودمخونو په څنډو(حاشیو ) کې ترسره کیده.

په کتابونو کې دتعلیقاتو دبرخې شته والی ډیر زیات علمي ارزښت لري له یوې خوا د اثر له لوستونکي سره دمتن د مشکلو برخو په تحلیل او پوهیدنه کې بشپړه مرسته کوي او له بلې خوا یې د معلوماتو پانګه ورزیاتوي اودڅیړنې نوي موضوعات ورته رالوڅوي.

**۷-نوملیک:**

په مردف ډول (دالفبا په ترتیب) په کتاب کې دشاملونومونو ،ځای نومونو ،شخص نومونو.... اصطلاحات اوداسې نور لستونه ، چې د کتاب په پای کې داړوند مخونو دشمیر سره یو ځای معمولاً تر مأخذونو دمخه راځي.

دتعلیقاتو سره دنوملیک تو پیر دادی،چې په تعلیقاتو کې نومونه یا اصطلاحات په تفصیل سره شرحه او څیړل شوې وي، خو په نوملیک کې یوازې دمتن هغه مخونه ورسره ښودل شوي وي،چې

دغه نومونه او اصطلا حات پکښې راغلي وي.
۸ـ مآخذونه:
په دغه برخه کې هغه چاپ او ناچاپ شوي آثار او منابع په ګوته کیږي، چې د اثر لیکوال ور څخه دلیکلو پروخت استفاده کړې وي.
په مآخذ ښودنه کې د اثر دلیکوال تخلص ، نوم، د اثر نوم، د خپریدونکی موسسې ، اداري یا شخص نوم ،دخپریدو ځای نوم، د خپریدونیټه ،شمیر او د کتاب دمخونو شمیره راځي.
ځیني لیکوالان مآخذونه د اړوندې پاڼې په متن کې په عددونو سره په نښه کوي او په لمن لیک کې یې دیادوشویو مشخصاتو سره سم د مآخذ یادونه کوي. او ځیني لیکوالان د کتاب په متن کې هماغه برخه، چې دبل اثر نه یې په کښې مستقیمه یا غیر مستقیمه استفاده کړې په عدد سره په نښه او دکتاب یا دهغه دهر فصل په پای کې په ترتیب سره په یو مشرح نوم لړ(لست) کې راوړي.
ځیني بیا د اثر په اړوندو مخونو کې ځای نه په نخښه کوي خو په پای کې په عمومي توګه دهغو اثارو نومونه اخلي، چې په کتاب کې یې ور څخه لږه یا ډیره استفاده شوې ده.
د خیرنې د علمي میتود له مخې غوره داده، چې دمتن په هره برخه کې، چې له نورو اثارو څخه په مستقیمه یا غیر مستقیمه توګه مطالب او مفاهیم راخستل کیږي باید ،چې په عدد په نښه شي او بیا یې په لمن لیک (پاورقي) او یاد کتاب په پای کې په ترتیب سره دمآخذ ښودنې له اصولو سره سمه یادونه وشي.

## لیک نخښې( Punctuation)

بې له تورو نه یو شمېر علامې ،ټکي او نښې شته، چې دلیک په لوستلو کې دخل لري، او یوه جمله یا کلمه د اشتباه او ابهام څخه ژغوري. یانې د دغو نښو او ټکو په لیکلو سړی پوهیږي، چې په کوم ټکي باید ودریږي او کومه جمله یا کلمه په بلې پورې وتړي.
دتعجب ، نوا ، پوښتنې ، خطاب او نورو کیفیاتو څرګندونه په همدغو نښو او ټکیو کیږي.چې په لیکو کې ډیر اهمیت لري.ددې لپاره، چې دلوستونکي سره دلیکنې په برخه کې پوره مرسته شوي وي په لنډه توګه ځیني لیک نخښې او د هغو د استعمال ځایونه در پیژنو ، کوم چې په پښتو او دري ژبو کې یې استعمال او کارونه دود ده:
۱ـ ټکی (.) Full stop :
دانحښه په لاندې دوو صورتونو کې استعمالیږي:
۱ـد هرې بشپړې او مستقلې جملې په پای کې د پوره توقف ، سا اخیستنې او ودریدنې لپاره راځي.
لکه: د حقې لارې لاروی د دین او وطن نه د دفاع په سنګر کې پراته دي.
۲ـ په لیکنه کې ترمخففاتو وروسته راځي او دغسې هر توری د خپل ځانګړې کلمې د مفهوم دافادې نمایندګي کوي.لکه: د م.م. سره منشي وویل چې باید په منځنې ختیځ کې دایمي سوله منځ ته راشي .
یادونه: (م.م) ملګري ملتونه مخفف شکل دی.

۲ـ ندایه ( ! ) یا «Exclamation »:
دا نښه په لاندینیو ځایونو کې استعمالیږي:
۱ـ دافسوس ،ارمان او حیرانتیا په وخت کې .لکه:
چې زه هم در سره وای ! ـ ارمان چې تللی وای !
۲ـ د غږ او بلنې په وخت کې : احمده ! دلته راشه.
۳ـ د خطاب لپاره: ښاغلو ! درنو حاضرینو ! ورونو !
۴ـ دامر په وخت کې: ودریږه ! پاڅیږه ! لاړ شه !
۵ـ د هیلې او خواهش د ښکاره کولو په وخت: کاشکې احمد مې لیدلای وای !
۶ـ د تحسین او آفرین پر وخت: آفرین ! ستا په همت .شاباس ! ښه کار دې وکړ
۷ـ د استهزا او تمسخر په توګه کوم ناپوهه شخص ته وو ایې: نابغه ! دادې څه کار وکړ. دې عقلمند ! ته ګوره !
۳ـ چپه پېښ ( ، ) یا «Comma »
په ډېریو لویدیځو هیوادو کې کامه د (و ) په ښه لیکل کیږي ، مګر په پښتو او دري کې د دې لپاره، چې (واو ) ونه لوستل شي سرچپه یې لیکي. په لیک ښنو کې کامه ډېره زیاته استعمالیږي او په مختلفو ځایونو کې ترینه کار اخستل کیږي.(دې ښې ته بیلوونې هم وایي) په َعمومي توګه یې د استعمال ځایونه دادي:
۱ـ دبیلولو دپاره:
الف:ـ اوږدې جملې، چې د څو ساده جملو څخه جوړې شوې وي د کامې په واسطه بیلیږي. لکه: دالاندې مثالونه:
ـ توریالي زمالیک ته تر اوسه ځواب نه دی ورکړی ، داګمان مې هم نه شې ، چې له دې وروسته به ځواب ورکړي.
ـ ده زیار ویوست ، چې سنک له ځانه سره ملګری کړي ، مګر سنک هیڅ کله دانه شو منلای ، چې بې سببه د چا دښمنې ته ملاوتړي.
ـ څه دې چې راکړه ، بیرته مې درکړه.
ب:ـ یوه مقدماتي فقره داصلې جملې نه جلا کوي.لکه:
ـ ددې تړون پر اساس ، غړي هیوادونه تعهد کوي ، چې په ښوونه اوروزنه کې له تبعیض نه کار نه اخلي.
ج:ـ معترضه جمله یا فقره ددوو کامو ترمنځ نیول کیږي.لکه: زه به د خالي په ورځ ، که خیروي ، ستاسې کره در شم.
د:ـ دیولړ مختلفو کلمو دجلا کولو لپاره.لکه: ده خپل کتابونه ،قلمونه ، بکس، اونور تدریسي لوازم له ځان سره واخستل.
ه:ـ ددې لپاره چې جمله یا شعر غلط ونه لوستل شي. لکه دا لاندې مثالونه:
ما ،ماما ته یو کتاب راوړ.
ماما ، ماته یو کتاب راوړ.

د رحمان بابا دالاندې بیت وګورئ، چې لومړی شکل یې سم او دوهم شکل یې نا سم دی:
۱- ډیر عزیز دي موم دلان تر سنګدلانو
ته یو ځاځکی شه داوښکو ، ګوهر مشه
۲- ډیر عزیز دي موم دلان تر سنګدلانو
ته یو ځاځکی شه ، د اوښکو ګوهر مشه
و:-دزرګونو اومیلیونونود بیلولو دپاره لکه:
نوموړي شرکت په تیر کال کې پنځه دیرش میلونه (۳۵۰۰۰،۰۰۰) افغانۍ خالصه ګټه کړې ده .
یادونه: دتیلیفون شمېره ، دکوځې شمېره او تاریخي کلونه کامه نه غواړي.

-دتړلو او بندولود پاره:
الف:-په معترضه فقرو او الفاظو پسې باید کامه راوړل شي .لکه: زما په عقیده ، که ته موافقه کوې یا یې نه کوې ، دشکسپییر سره په ډرامه لیکلو کې څوک سیالي نه شي کولی.
ب:-له منادی نه وروسته کامه راځي .لکه: زلمیه ، اجازه ده،چې له تانه پوښتنه وکړم ؟
چې کرې ، هغه به ریبې.-مه کوه په چا ، چې ونه شي په تا
۴-دپوښتنې نخښه: (؟) یا «Question mark »
دا نښه دسوال اوپوښتنې علامه ده. د هرې جملې په اخیر کې چې دغه نښه وي هغه جمله دا ستفهام مانا لري.
دپوښتنې نښه په لاندې ځایونوکې استعمالیږي:
۱-دمخامخ پوښتنې په پای کې: ستا نوم څه دی ؟ته څه وخت هرات ته ځې؟
۲-د شک او تردید دپاره: که دکوم چاد زیږیدنې یا مړینې او یا دکومې تاریخي واقعې د پیښیدنې په کال کې شک موجود وي تر شکمنې نیټې وروسته دپوښتنې علامه په قوسونوکې راځي.
لکه: درحمان بابا دمړینې کال ۱۱۲۸ه،ق (؟) دی.
یا : دی د خپلو همکارانوسره همدردي (؟) لري.
۳-کله چې په یوه جمله کې دننه کومه پوښتنه راغلې وي ، لکه: دولس کاله پخوادې په یاد دي ؟ روسان له افغانستان نه په ماتې ووتل
۵-ممزه (ځنډ نخښه ) (؛) یا «Semicolon »
دا نښه نه دټکي (.) په شان د بشپړ تو قف لپاره اونه د کامې (،) د لږ ځنډ او ساه اخستلو لپاره استعمالیږي بلکې دداړوترمنځ ځانګړی حد او له دواړو نخښنو سره توپیر لري.
په لاندې ځایونوکې استعمالیږي:
۱-که چیرې دوې جملې چې تقریباً یوه له بلې سره مساوي وزن او اهمیت ولري ځنګ په ځنګ راشي دهغو ترمنځ میمزه (؛) استعمالولی شو .لکه: لاندې مثالونه په تیر کال کې حکومت د قاچاق مخه ونیوله ؛ بډې خور ته یې سزا ورکړه ؛ اختلاس کوونکي یې محاکمه کړل؛ او اجتماعي عدالت دتآمینولو په برخه کې یې په هر اړخیزو اقداماتو لاس پورې کړ.
یا :موږ دوی ته دلیلونه وویل ؛ ډیر عذرونه اوزارۍ مو ورته وکړې؛ له فشار او تهدید نه مو کار

واخيست ؛ خو دوی له مور سره ملګر تیا ونه کړه او خبره يې راسره ونه منله.

**۶ـ** دندايې او سواليې مرکب شکل( !؟):

کله کله ځينې ليکوال د سواليې او ندايې علامې دواړه څنګ په څنګ ديوې جملې په پای کې راوړي ، خو شرط دادی، چې ندايه به لومړې او سواليه به وروسته وي. په دې کې دليکوال هدف دادی، چې دهغه په واسطه له يوې خوا دلوستونکي پاملرنه جلبوي او له بلې خوا يې پکښې پوښتنه غرض وي.

په لنډه وينا ويلای شو ،چې ديوې ډيرې مهمې پوښتنې په پای کې دندايې او سواليې مرکب شکل راځي .لکه: ته نه يې خبر چې دافغان انګليس په يوه جګړه کې دپنځلس زره انګريزي پوځ نه يوا ځې ډاکټر برايډن مړ ژواندی خلاص شو !؟

يا : ته نه پوهيږې دافغانستان خومؤمنو خلکو پاڅون بالاخره دروسيي ښکيلاک ټغر له ټولې نړۍ نه ټول کړ !؟

**۷ـ** شارحه( : ) يا « colon»

دا نښه ديو لغت يا فقرې دشرح کولو دپاره استعماليږي. کله چې لوستونکی دانښه ووينې هغه ته دا توقع پيدا کيږي، چې راتلونکی عبارت به دوعدې سره سم پر مطلب باندې نوره رڼا هم واچوي.

دالاندې نمونې وګورئ:

۱ـ د سياستمدار لپاره دا خواص ډير مهم دي: درې درجې جرآت او يوه درجه پوهه

۲ـ د افغانستان مشهور ښارونه دادي: کابل ، ننګرهار ، کندهار ، هرات....

د بل چا دنقل قول په صورت کې تر غبرګو ليندکيو (قوسونو ) دمخه راځي .لکه: رسول الله (ص ) فرمايلي دي: «...آيا زه تاسې ته ونه وايم، چې دوزخي څوک دی ؟

واورئ ! هر کبرجن ، بد خويه اوبخيل دوزخي دي»

**۸ـ** وړې ليندۍ ( ) يا «Small bracket »

په عمومې ډول ليندۍ په دې لاندې ځايونو کې استعماليږي:

۱ـ کله چې معترضه فقره داصلي جملې په منځ کې راشي .لکه: دحمان بابا اشعار، چې (ستا ډير خوښ دي ) د ساده انشاء ډيره ښه نمونه ده.

زه سبا (که خدای کول ) ننګرهار ته ځم.

۲ـ هغه رقمونه او د ابجد توري، چې د ويش د ښودلو دپاره راځي دليند يو ترمنځ نيول کيږي. لکه: داسلام پنځه بناوې دادي:

(۱) کلمه (۲)لمونځ (۳)روژه (۴) زکات (۵) حج

۳ـ په قانوني او تجارتي پاڼو کې دپيسو مقدار لومړی په تورولو وروسته دليند يو ترمنځ په رقمونو ليکل کيږي .لکه:

ددې تړون له مخې به نوموړي کور مياشتنۍ کرايه دوه زره څلور سوه پنځه ويشت (۲۴۲۵ ) افغانۍ وي.

۴ـ په ليکنه کې ليکوال دنورو ژبو د لغاتو مانا په وړو ليند يو کې ليکي ،لکه:

د هر سياسي نظام منطق (پوخوالی ) هغه د پاليسۍ (کړنلارې ) څخه څرګنديږي

۵ـ ليکونکی ځينې تاکيدي کلمې ، فني او تخنيکي اصطلاحات په وړو قوسونو کې ليکي.

۶ـ ځیني لیکوالان دیوې موضوع مآخذ هم په وړو لیندیو کې لیکي ،لکه:
روسان د۱۳۲۷ه ش کال د دلوې په (۲۲) مه نیټه د شرمیدلې ماتې په نتیجه کې له افغانستان نه ووتل.
(د ژنیوروغه جوړه ، د ډاکټرحسن کاکړ لیکنه ،۲۰ مخ)
۷ـ دیو شخص د زیږیدنې او مړینې نیټه هم په قوسونو کې راځي ،لکه:
احمد شاه بابا (۱۷۷۲ـ۱۷۲۳م) د پاني پت په جګړه کې پر مرهټیانو بریالی شو.
۹ـ غبرګ قوسونه («») یا د نقل نخښه « Snorted comma»
دنقل نښه په لاندې ځایونو کې استعمالیږي:
۱ـ ټول مستقیم نقل قولونه په غبرګو لیندیو کې راځي، لکه:
د بشریت ستر لارښود حضرت محمد(ص) فرمایلي دي:
«مسلمانان په خپلو کې سره ورونه دي... هغوی دې نه په امانت کې خیانت کوي ، نه دې په خپلو کې سره دروغ وایي اونه دې یو بل سره رسوا او شرمنده کوي. د هر مسلمان ورور عزت ، آبرو ، مال او وینه تویول حرام دي. دانسان دپاره همدا ناوړه خوی دی، چې هغه بل مسلمان ورور سپک او خوار وګڼي.» (ترمذي)
۲ـ که له یوه اثر څو پراګرافه رانقل کیږي باید د هر پراګراف په سر کې د نقل نښې راشي.
لکه: «په عراق کې عربي ویونکي پنځه میلیونه شپږسوه پنځوس زره تنه دي»
«په ترکیه ایران او افغانستان کې عربي ویونکي شپږویشت میلیونه اوه سوه پنځه دیرش زره تنه دي.»
۳ـ دویاند (نطاق) د تغییر په حال کې:
په کیسو او ډرامو کې، چې د خبرو نوبت بدلیږي نو د نوي ویاند خبرې معمولاً په نوې کرښه کې راځي او د نقل د نښو ترمنځ نیول کیږي:
«خان میره !ما ګومان کاوه چې ته به څومره غیرتي سړی یې ،مګر خبر نه وم، چې ته ګیدړ وختې...
د خپل لاس ټوپک مې درکړ، چې ته به حبدر مړکړې....»
«خان صاحب له ځانه سره به فکر وکړم. دلته خو زه څوک نه لرم، چې مشوره او مصلحت ورسره وکړم»
۴ـ کله لیکوال ځانته خاصه اصطلاح وضع کوي، چې په محیط کې عمومیت نه لري ، لکه: دی «ګیډیالوجست» دی له خپلې ګیډې لغتونه وضع کوي.
۵ـ د تاکید او توجه جلبولو دپاره، لکه: «حق» ورکول کیږی نه ، اخیستل کیږي.
۶ـ دمقالو عنوانونه:
په کابل مجله کې مې د «ژبې او کلتور» په باره کې مقاله ډیره خوښه شوه.
۷ـ په متن کې د ځینو خاصو نومونو راخیستنې به وخت کې هغه نومونه په غبرګو لیندکیو کې نیول کیږي.لکه: مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي په خپل مشهور اثر «د پښتو ادبیاتو تاریخ» کې پښتو ادب پر پنځو دورو ویشلی دی.
۱۰ـ ستوری ( * )یا « One star»
په لاندې ځایونو کې کارول کیږي:
۱ـ ځیني لیکوالان یې په متن کې کلمې تر څنګ ږدی، چې په لمن لیک (پاروقي) کې د هغې په هکله

خاصې خبرې او توضیحات لیکي.
**۲ـ** ځینې لیکوالان یې د هغه ټکې ترڅنګ ږدی، چې په متن کې یې راوړې خو په صحت یې باور نه لري.
یادونه: باید ووایو چې ځینې لیکوال د هغه ټکې ترڅنګ، چې په صحت یې باور نه لري په قوس کې سوالیه (؟) لیکي. په دغو دواړو صورتونو کې: ستوری ایښودل کیږي او که د پوښتنې نښه، لازمه ده چې په لمن لیک کې یې توضیح وشی.
**۱۱ـ** درې ستوري (* * *) یا «Three star »:
چیرته چې د مقالې یوه برخه تمامه شي او بله برخه شروع کیږي نو د دواړو برخو ترمنځ د غه نښه یانې ستوري لیکي، چې یوه برخه له بلې نه بیله شي.
درې ستوري **معمولاً** د یو ډرام یا داستان په یوه پرده یا برخه کې چې ځو مفکورې په جلا جلا پراګرفونو کې څیړل کیږي، نو د هرې مفکورې تر پای ته رسیدو وروسته په یو خالي کې درې ستوري (* * *) ایښودل کیږي.
**۱۲ـ** ډش یا لنډکش خط (ـ) یا «Dash »
په لاندې ځایونو کې استعمالیږي:
**۱ـ** د هغه مرکب خاص نوم په منځ کې، چې دوه توکي ولري، لکه: د کابل ـ کندهار لویه لار (شاهراه)
**۲ـ** ځینې لیکوال په جمله کې معترضه برخه د دوو ډشونو ترمنځ راخلي. لکه: په یو مضمون کې د شاګرد پوهه ـ لکه چې تجربو ښودلې ده ـ د هغه له پوښتنو معلومیږي.
یا: هغه ورځ ـ خدای (ج) دې بیا نه راولي ـ په مسلمانانو څومره وغمیدله، چې په افغانستان کې کمونیستي ریژیم اعلان شو.
**۳ـ** په داستان یا ډرامه کې، چې د دوو تنو ترمنځ خبرې اترې وي، نو د هر یوه خبره په همدغه نښه بیلوي او د نوم د تکرار لیکنې مخه نیسي، لکه:
احمد، محمود ته وویل:
هغه به ووینې؟
ـ هو! که وخت مې پیدا کړ
ـ که وخت دې پیدا نه کړ؟
ـ بیا به اروم رم اخبر کړم.
**۴ـ** داعدادو، ارقامو او نیپو ښودلو لپاره هم استعمالیږي، لکه: سږ کال د زمري له ۲۰ـ۱۵ پورې سخته ګرمي وه.
یا: د (۱۹۳۹ـ۱۹۴۵) کلونو ترمنځ په دویمه نړواله جګړه کې په میلیونونو انسانان ووژل شول.
**۵ـ** په یوه مادوار لست کې د عددونو کیڼ اړخ ته ایښودل کیږي، لکه:
د ښه ویاند (نطاق) صفتونه دا دي:
**۱ـ** د خبرو منطقي تسلسل
**۲ـ** په موضوع حاکمیت
**۳ـ** ښه غږ لرل
**۴ـ** داورید ونکو له روحیاتو الهام اخیستل

۱۳ـ درې ټکي (... ) یا «Ellipsis mark »

درې ټکي په لاندې ځایونو کې استعمالیږي:

۱ـ د جملې په پیل هغه وخت راځي، چې لیکوال په خپله لیکنه کې د بل چاد خبرې یوه برخه رانقلوي، نو کومه مخکینۍ برخه چې د ده له موضوع سره اړخ نه لګوي پرځای یې درې ټکي (... ) ږدي. لکه: «... اسلامي اخلاق هیڅ کله دا نه ایجابوي، چې څوک خپل خیر دنورو په شرکې ولټوي»

۲ـ د جملو په منځ کې هم د متن د یوې برخې څخه، چې مطلوبه نه وي د حذف او صرف نظر کولو په منظور راځي. لکه: دا فغانستان مؤمن خلک، چې لرغونی کلتور او له ویاړه ډک تاریخ لري ... د بهرنیو یرغلګرو پر ضد یې په پوره میړانې سره مبارزه او مجاهده کړې او ... ددې خبرې د ثبوت لپاره د افغانانو او انګریزانو ترمنځ درې جګړې او له روسانو سره لس کلنه جګړه ډیرې ښې نمونې دي.

۳ـ کله چې د بل چاقول رانقلوو حذف شوي عبارتونه د درې ټکو په واسطه ښودل کیږي.

که حذف شوی عبارت د جملې په پای کې راغلی وي او جمله ور باندې ختمه شوې وي، څلور ټکي ایښودل کیږي، درې یې د حذف شوي عبارت پر ځای او یو ټکی د جملې د پای دپاره.

۴ـ د متن په لیکنه کې د هغې کلمې پرځای هم درې ټکی راوړي، چې د ویلو نه وي او د قلم عفت یې دلیکلو اجازه نه ورکوي او یا لیکوال نه غواړي، چې هغه ولیکي.

۱۴ـ د ټینګار نخښه یا اوږد کش خط (ــ ):

کله چې په یوه لیکنه کې داسې کلمې، جملې یا پراګرافونه راځي، چې د نورو کلمو، جملو او پراګرافونو په نسبت یې اهمیت زیات او ورته پاملرنه مطلوبه وي او یا د لیکوال داهدف وي، چې پر دغه برخه زیات تاکید او ټینګار وکړي نو ددې لپاره دا لاندې لارې شته:

۱ـ دغه برخه باید د نور متن څخه په برجسته توګه ولیکل شي.

۲ـ د لیک په ډول کې تو پیر راولي، په دې ډول، چې که نور متن په نسخ لیک لیکل شوی وي دا برخه باید په نستعلیق ولیکل شي، چې له نور متن څخه د مطلوبې برخې توپیر وشي.

۳ـ معمولاً لیکوالان د مطلوبې برخې د ښودلو لپاره تر هغې لاندې کرښه کش کوي، لکه: په افغانستان کې د کمونستانو جنایاتو مؤمنو افغانانو ته د هغوی د تیر ایستونکي شعار «کور، کالي، ډوډۍ» اصلي ماهیت ښه په ډاګه کړ.

۱۵ـ غشی ( ⟶ ⟵ ):

دغه نښه په عام مفهوم د لوري او طرف څرګندونه یا ښودنه کوي. په لیکنو کې معمولاً ددو مقصدونو لپاره استعمالیږي.

۱ـ کله چې لیکونکی په توضیحي او تشریحي لمن لیک (پاورقي ) کې کومه توضیح یا تشریح لیکي او په هماغه مخ کې یې لیکنه ځای نه شي نو لازماً باید تر هغه ورسته مخ ته نقل شي نو د راغلې توضیح په اخرنې برخه کې

( ⟵ ) د غشي په راوړلو سره لو ستونکی ته ښودنه کوي، چې نوره توضیح په راتلونکی مخ کې ولولی. په راتلونکي مخ کې د توضیح لیکلو د مخه بیا هم

( ⟵ ) غشي نښه ایښودل کیږي تر څو لوستونکی ته وښیي، چې دا توضیح د مخکني

مخ څخه دلته راغلې ده.
۲ـ د يوې ترکيبي کلمې د تجزيې او ياد څوجزونو د ترکيب ښودنې لپاره راځي .لکه:دوست+ي = دوستي   يا : پوهنه+تون= پوهنتون.
۱۲ـ لوی قوسونه ( [    ] )يا «Bracket »:
 دقوسونو داخاص شکل هغه وخت استعمالېږي، چې ليکوال په خپله ليکنه کې د کوم ضرورت له مخې دبل چا عبارت رانقل کړي او غواړي، چې هغه ښه توضيح کړي او له ځانه پرې څه اضافه کړي ، نو هغه دبل چانقل قول خو په وړو غبرګو لينډکيو کې نيول کيږي ، پخپله دليکوال له خوا اضافه شوي توضيحات په دغو لويو قوسونو [ ] کې  راځي.
« دمخه په سيمه ايزه او نړيواله سطحه دا ذهنيت موجود وو ،چې دروسې يرغلګر پوځونه ماتې نه خوړونکي دي ، نوځکه يې چا دمقابلې لپاره زړه  نه شو کولای  اودنړۍ ډيره برخه يې ترګواښ او تهديد لاندې وه [ خو مؤمنو افغانانو هغوی له شرميدلې ماتې سره مخامخ او نړۍ يې دهغو له شر نه وژغورله ]...»
۱۷ـ ويرګول (/):
دويرګول لفظ دلاتيني د (ويرګوله ) څخه اخيستل شوی دی. چې په اصل کې واړه ميل او سيخ ته ويل کيږي. دويرګول نښه، چې دلته ددوو لينډيو ترمنځ ښودل کيږي (/) په انګليسي کې دبار په نوم يادېږي. زموږ زيات شمير ليکونکي سرچپه واو( ، )ته ويرګول وايې ، مګر دانګليسي قاموسونه او دليکوالی په باب کتابونه ويرګول او سرچپه واو دوه بيلې بيلې نښې ګني.
ويرګول په لاندې ځايونو کې استعماليږي:
۱ـ معمولاً د ( او /يا ) ترمنځ ويرګول نښه ايښودل کيږي.
که موږ دالاندې جملې ولولو :
(هلکان او /يا نجونې دواليبال ننداره کوي ) مانا يې داده ،چې هلکان او نجونې يا هلکان يا نجونې دواليبال ننداره کوي.
۲ـ ويرګول دنيټې د ليکلو د پاره هم استعماليږي. مثلاً ددې پرځای ،چې د ۱۳۵۷ کال دثور اومه نيټه وليکو کولای شو دا سانتيا دپاره ويرګول استعمال کړه او داسي يې وليکو :۱۳۵۷/۲/۷ .
۳ـ کله ديو بيت دمسريو ترمنځ فاصله نه پريښودل کيږي پر ځای يې ديوګول نښه استعماليږي. لکه دخوشحال خټک دا بيت:
درست افغان له کندهاره تر اټکه              سره يو دننګ په کارپټ او اشکار
۱۸ـ لمن ليک (پاورقي ):
کوم وخت چې ديو اثر څخه عبارت يا مفکوره را نقل کيږي بايد په لمن ليک کې دليکونکي، دکتاب دخپرونکې مؤسسې ، دچاپ نيټې او دکتاب صفحې ته په ترتيب سره اشاره وشي .لکه دالاندې مثال:
ګل پاچا الفت ، لوړ خيالونه اوژور فکرونه ، پښتو ټولنه ،۱۳۳۵ ، ۲۹مخ.
که چيرې کتاب په بيبلو ګرافي کې معرفي کيږي ، داصلي نوم نه تخلص مخکې راوړل کيږي. لکه:
الفت ګل پا چا ، لوړ خيالونه او ژود فکرونه ، پښتوټولنه ،۱۳۳۵.
کله کله د کتاب د چاپ ځای او نيټه په لينډکيو کې نيول کيږي. لکه:

ګل پاچا الفت ، لوړ خیالونه او ژور فکرونه ، (کابل: د پښتو ټولنه ۱۳۳۵) ، ۲۵۰مخ.
که چیرې څیړونکې غواړې د یوې مجلې څخه عبارت را واخلې نو د مقالې نوم د نقل د نښو ترمنځ لیکې ، ورپسې د مجلې نوم د چاپ ځای ،نیټې او مخونو ته اشاره کوي .لکه:
محمد صدیق روهي ، « د فولکلوري څیړنې میتودولوژي» فولکلور ، د فولکلور او ادب ټولنه ، ۱۳۵۲، لومړۍ ګڼه ، لومړی کال ،۸مخ.

## اخځلیکونه


۱- افق ، محمد ظاهر ، لیک ښنې
۲- الفت،ګل پاچا ، لیکوالي املاء انشاء ،کابل:پښتو ټولنه،۱۳۳۹کال
۳- الهام،محمد رحیم، دهریرت پنزل پښتو ګرامر ژباړه
۴- بخاري،عظیم شاه خیال،صرف ونحو پښتو ، پېښور !۱۹۴۴ز .کال
۵- بېنوا ،عبدالرؤف،اوسنی لیکوال ،کابل : پښتو ټولنه۱۳۴۲کال
۶-حبیبي ،عبدالحی ، پښتانه شعراء ،کابل :پښتو ټولنه،۱۳۲۰کال
۷- حبیبي ،عبدالحی ،د پښتو ادبیاتو تاریخ لومړی ټوک او دوهم ټوک ، پېښور:دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴کال
۸- رحمان بابا ،دیوان، پیښور: قصه خوانی، ۱۹۹۷ زیږدیز کال
۹- روهي،محمدصدیق، څېړنې لارښود ،کابل:پښتو ټولنه،۱۳۵۴ یونیز کال
۱۰- روهي،محمدصدیق.پښتوادبیاتو تاریخ معاصره دوره، پیښور: دانش خپرندویه ټولنه ،۱۳۸۴ کال
۱۱- رښتین،صدیق الله،د پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه،پیښور: د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز ۱۳۸۳کال.
۱۲- رښتین،صدیق الله،ژبښودنه، پیښور : خاور خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴کال
۱۳- زرغونه،زېور ، پښتوګرامر ،دژبو او ادبیاتو پوهنځی درسي لکچرنوټ
۱۴- زرغونه،زېور ، پښتونحو ، پیښور: د ساپي پښتو څیړنو او پراختیا مرکز،۱۳۸۴کال
۱۵- زیار ،مجاوراحمد ، پښتوپښویه،پیښور : دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴کال
۱۶- زیور ،زېورالدین،پښتوادبیاتوتاریخ لرغونی،کلاسیکه او اوسنۍ دوره، دژبو ادبیاتو پوهنځی درسي لکچر نوټ
۱۷- مومند ،عبدالحمید ،دیوان، پیښ،ر: دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۳کال
۱۸- مشوانی، عبدالقیوم،دخوشحال خان کلیات، پیښور: دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴کال
۱۹- نیازی، سنګروال شهسوار ،د پښتوادبیاتو معاصرتاریخ، پیښور:احمد شاه ابدالي پوهنتون، ۱۳۷۵کال
۲۰- هاشمي، سید محی الدین، دلیکوالۍ فن، پیښور: دانش خپرندویه ټولنه ،۱۳۷۲کال